www.nanafghan.com

د ماشومانو لپاره

# اسلامي لاربنود

سيدعبدالله ولي زی

۱۳۸۹
وری




مستقبل خپرندوی

د ماشومانو لپاره

# اسلامي لاربنود

سیدعبدالله ولي زی

۱۳۸۹ وړی



د ماشومانو لپاره اسلامي لاربنود

لیکوال: سیدعبدالله (ولي زی)
اهتمام: ډاکتر لمر
ټایپ: سیدعمادالله
خپروندی: مستقبل خپرندوی
د چاپ نوبت: دویم
د چاپ شمېر: ۱۰۰۰ ټوکه
چاپ ځای: کابل
لومړی چاپ: ۱۳۸۷ لمریز لېږدیز
دویم چاپ: ۱۳۸۹ لمریز لیږدیز

د ټیلیفون شمېره: ۰۰۹۳-۷۷۷۸۶۹۸۷۷
برېښنالیک: abdullah_walizai@hotmail.com

ای ایس بي این: ISBN 978-9936-21-070-7









# مننليک

ښاغلو لوستونکو تاسو ته مالومه ده، چې د يوې ټولنې د پرمختګ او د ټولنيزې ادارې د سمبالولو لپاره دماشومانو او ځوان نسل سمه روزنه اړينه بريښي، چې د ځوان نسل سمې روزنې او ودې لپاره پوهنيزو موسسو ته اړتيا شته، چې زموږ ماشومان يکې ليک-لوست زده کړي او خپل روزنيز پروګرامونه ترسره کړي، خو د ښوونيزو او روزنيزو هڅو لپاره د پوهنيزوکتابونو شتون هم اړين بريښي.
زموږ ګران هېواد افغانستان يو اسلامي ملک دی، چې د ماشومانو، ځوانانو او وګړو روزنه په اسلامي ارزښتونو ډېر غوره ګڼل کېږي، ځکه چې د اسلام مقدس دين زموږ ملي ارزښت دی او زموږ پر خلکو د الله (ج) لويه پېرزوينه ده، نو د اسلامي ارزښتونو په اړه ليکل او مالومات ترلاسه کول د ټولنيز ژوند په پرمختګ کې هر اړخيز اغېز لري.
ما هم د خپلو امکاناتو سره سم د «د ماشومانو لپاره اسلامي لارښود» د کتاب په ليکلو لاس پورې کړ، چې د خپلو افغانو وروڼو او خويندو د مالومات لپاره يې وړاندې کوم، په دې هيله چې زموږ ماشومان او ځوان نسل ورنه ګټه پورته کړي.
ګرانو لوستونکو د دغه کتاب په بشپړولو کې زما سره زما ډېرو تکړه او غښتلو ښوونکو پوهندوی استاد عبدالاحد مسلم او اسدالله غضنفر، ډاکتر سيدنصيراحمد او زما کشر ورور سيدعماد الله هر اړخيزه مرسته کړې. مستقبل خپرندوی د دغه کتاب د دويم ځل خپرولو هوډ کړی، زه له دوی ټولو څخه د زړه له کومې مننه کوم او له خدای (ج) څخه دوی ټولو ته د دواړو: نړۍ او آخرت د ښېګڼو او نېکمرغيو غوښتونکی يم، دوی دې هرکله بريالي وي.
درنو لوستونکو په پای کې، د دغه کتاب د لا ښه والي او سمون لپاره ستاسو د وړانديزونو په تمه يم او ستاسو سمونې به په ورين تندي و منل شي.

ولي زی

# نیولیک







د ماشومانو لپاره اسلامي لارښود










## سریزه

لمونځ د دین له ارکانو څخه یو مهم رکن بلل کېږي، او هغه لوړ بدني عبادت دی چې د آدم نه تر خاتمه پورې یې ټولو ته د اداکولو لپاره حکم شوی. د ټولو هغو ګناهونه چې د انسان بر خلیک د تباهي کندې ته کاږي، لپاره یوازینی درمل لمونځ دی. څنګه چې لوی څښتن تعالی په خپل کتاب کې فرمایلي دي: «په ریښتیا سره چې لمونځ له بدکاریو او له بدو کړووړو څخه سړی منع کوي.» نو ځکه لمونځ د مؤمن معراج، د دین ستنه، د کافر او مؤمن توپیر او د وړو ګناهونو پاکوونکی شمېرل شوی دی.
سر ببره پردې چې د لمانځه په برخه کې علماؤ، د دین پوهانو ډېر زحمتونه ګاللي دي؛ او په تفصیل سره یې څرګندونې مسلمانانو ته وړاندې کړې دي، خو د ډاکټر ارشد ارشاد کتاب «د لمانځه لارښود» چې ښاغلي او قدرمن ورور سیدعبدالله ولـــي زي په خپل کتاب «د ماشومانو لپاره اسلامي لارښود» کې په پراخه پیمانه کارولی، د خاصې ځانګړتیا درلودونکی دی. لکه د هرې مسئلې جلاوالی، د ساده ژبې کارونه، د انځورونو ښکلا او مناسبت له موضوع سره په اوسنۍ زمانه کې د دین لپاره بې ساری خدمت دی. د ماشومانو لپاره د لمانځه د زده کړې لپاره ډېر ګټور کتاب دی.
د «د ماشومانو لپاره اسلامي لارښود» کتاب د « لمانځه لارښود» سره غبرګ یو او بل په ځانګړې توګه بشپړوي، چې د علمي محتوی له نظره د مسائلو اړیکي یو د بل سره ترتیب او سمبالونې یې ډېرې په زړه پورې، پوهونکې دي او ښه لارښود بلل کېږي. د پاک څښتن تعالی څخه غواړم چې ښاغلي سیدعبدالله ولي زي ته د پوهې، استعداد او لاښه خدمت کولو برکت او توفیق ورپه برخه کړي او د نوموړي دغه دیني خدمت په خپل دربار کې قبول او منظور وګرځوي.

په درناوی

پوهندوی عبدالاحد مسلم
د کابل د ښوونې او روزنې د پوهنتون اداري مرستیال او د اسلامي فرهنګ او ثقافت د څانګې ښوونکی



# بسم الله الرحمن الرحيم

## سپړنه

درنو هېوادوالو ! زموږ هېواد په وروستيو دېرشو کلونو کې له ډېرو ناخوالو سره مخامخ شو او د وروستۍ دېرشکلنې غميزې په بهير کې د هېواد ټولنيزې، پوهنيزې او کلتوري برخو ته نه جبرانېدونکي زيانونه وراوښتي دي چې زموږ ماشومان او ځوان نسل يې له ډېرو ناخوالو سره مخامخ کړی دی او په ټولنه کې يې د نا پوهۍ ګواښ رامنځ ته کړی دی.
ما د ښاغلي سيد عبدالله ولي زي کتاب«د ماشومانو لپاره اسلامي لارښود» وکاته چې د ماشومانو لپاره د اسلام د پنځو ستنو په برخه کې يو ډېر غوره لارښود ګڼل کېدای شي. د غه اسلامي لارښود په ښه او روانه ژبه ليکل شوی دی، د سکالو وېشنه يې په ډېره ښه توګه تر سره شوې ده او د لمانځه خوځښتونه (حرکات) په انځوريزه بڼه پکې سمبال شوي دي، چې دغه اسلامي لارښود يې د هر چا لپاره او په تېره بيا د ماشومانو لپاره ډېر په زړه پورې او د پوهې وړ ګرځولی دی.
د اسلام مقدس دين بنسټيزې ستنې د طيبې کليمه، لمونځ، روژه، زکات او د حج د فريضې تر سره کول دي، ځکه نو د اسلام د دغه رکنونو او په تېره بيا د لمانځه په اړه مالومات ډېر غوره ګڼل کېږي، چې د انسان په ټولنيزو وده کې هر اړخيز اغېز لري، خو د اسلام د نورو ارزښتونو په اړه هم بايد کتابونه وليکل شي چې د پښتو لمنه پرې درنه شي.
هر انسان چې د زړه له تله «لآإِلٰهَ إِلاالله مُحَمَّدٌ رَسُولِ الله» ووايي، نو مسلمان ګڼل کېږي، په بالغ انسان لمونځ فرض دی او د ماشومانو په روزنه کې خپل ګټور اغېز لري. روژه هم په بالغ مسلمان فرض ده، چې په کال کې د روژې په مبارکه مياشت کې د کال په بېلابېلو مودو کې په دوراني بڼه ترسره کېږي.






زکات په يو بالغ هوښيار مسلمان باندې فرض دی، يو شتمن مسلمان بايد د خپلې کلنۍ ګټې ۲،۵ ٪ ، د سوداګريزو شتو ۲،۵ ٪ برخه د زکات په بڼه او تر ۱۰ ٪ د غلجاتو عشر په شکل د ټولنې د پرمختګ او د ستونزو د حلولو لپاره ورکړي.
د حج فريضه په هغه وخت کې تر سره کېږي چې يو انسان يې اقتصادي امکانات ولري، پوروړی نه وي، کورنۍ يې بشپړه سوکاله ژوند ولري او ګاونډيان يې د لوږې له ګواښ سره مخامخ نه وي.
درنو هېوادوالو ! موږ مسلمانان بايد هڅه وکړو چې د اسلام رېښتني ارزښتونه خلکو ته ځرګند کړو او خپل اولاد په ښه او اسلامي روحيه وروزو او ټولنې ته يې وروپېژنو، نو په پای کې خپلې خبرې راغبرګوم او دا په ګوته کوم چې دغه کتاب د ماشومانو او ځوان نسل لپاره يو ګټور کتاب دی او د اسلام د پنځو رکنونو په اړه غوره مالومات لري، چې تاسو يې لوستلو ته رابولم.

بسم الله الرحمن الرحيم

رَبِّ اجعَلني مُقِيمَ الصلواۀ وَمِن ذُرِّيَتِي رَبَّنَا وَتَقَبَّل دُعَآءِ * رَبَّ اغفِرلِي وَلِوَالِدَيَ وَلِلمَؤمِنِينَ يَومَ يَقُوُمُ الحِسَابِ*

و من الله التوفيق

ډاکتر سيد نصير احمد

نيدرلند



# د لوی او بښونکي څښتن په نامه

## يادونه

درنو لوستونکو ! ما هڅه کړې چې د اسلام د پنځو رکنونو په اړه د ماشومانو لپاره د ښلاښلو کتابونو څخه لنډ مالومات را ټول کړم چې ګران ماشومان وکولی شي له هغه څخه ګټه واخلي او زه دغه کتاب د خپل ښوونکي مرحوم سيد مجيب احمد لمــر روح ته ډالۍ کوم، چې تاسو په پيل کې د مرحوم سيد مجيب احمد د ژوند ليک لوستلو ته رابولم.

د مرحوم سيد مجيب احمد لمر ژوند ليک

سيد مجيب احمد د سيد عبدالاحمد زوی، د سيد عبدالواحد لمسی، د سيد نور محمد کړوسی، د سيد شېر محمد کودی او د سيد لعل محمد پړدی دی، چې د ۱۳۵۹ لمريز لېږديز کال د سلواغې د مياشتې په شپږويشتمه نېټه د جوزجان ولايت د شبرغان په ښار کې زېږېدلی دی او د ۱۳۸۴ هـ ش کال د کوچني مبارک اختر په لومړۍ ورځ چې د ۱۳۸۴ هـ ش کال د لړم له ۱۲ سره سمون لري د بلخ ولايت د خلم ولسوالۍ د کفترخانې په سيمه کې د ګاډي د اوښتلو له کبله په حق ورسېد (انالله و انا اليه راجعون).

مرحوم سيد مجيب احمد د افغاني دودونو سره سم لومړی د بغدادي قاعدې په زده کړې په کور کې پيل وکړ او په ۱۳۶۵ هـ ش کال د شبرغان ښار د ابن يمين په ښوونځي کې شامل شو، د ژوند د ناخوالو له امله يې د ښوونځي لوستل هلته سر ته ونه رسېدل او د زده کړو لپاره د پېښور ښار ته کډه شو، چې په پېښور کې يې د ښوونځي تر څنګ د کمپيوټر او انګرېزي ژبې زده کړو ته هم اوږه ورکړه او په پوره بريالېتوب سره يې د ښو پايلو تر لاسه کولو سره ښوونځی او د کمپيوټر مسلکي زده کړې پای ته ورسولې، چې په پای کې د کمپيوټر او انګرېزي ژبې د ښوونکي په







توګه وګومارل شو. سيد مجيب احمد همدا ډول د ګڼشمېر ديني کتابونو زده کړه له پلاره ترلاسه کړې ده.

سيد مجيب احمد د ۲۰۰۲ م کال په پيل کې له مهاجرته بېرته هېواد ته راستون شو او په يوه غير دولتي پولنډي موسسه کې يې د کمپيوټر، اداري چارو او پلان جوړونې دنده پر غاړه واخيسته، چې په هېواد کې د ښوونځيو جوړولو او د ښوونې او روزنې په نورو برخو کې په کار بوخت ؤ. سيد مجيب احمد د دغو دندو تر څنګ د کانکور د آزموينې د تر سره کولو وروسته د ښوونې او روزنې پوهنتون د ادبياتو په پوهنځي کې پوهنپال هم ؤ.

د پولنډي موسسې کارونه د افغانستان په ټولو ولايتونو او لرې پرتو سيمو کې تر سره کېدل او مرحوم سيد مجيب احمد د زړه له تله د هېواد په بيارغاونه کې او د هېواد د بچيانو د خدمت لپاره ملا تړلې وه او د ښوونې او روزنې په بيا رغاونه کې يې هر اړخيز زيار ګاللی دی. د کارونو د ښه سمبالښت لپاره د هېواد ښلاښلو سيمو ته تللی او د ښوونځيو لپاره يې د سيمو حالات خپله څېړل او همدا ډول يې د ښوونې او روزنې د لا ښه والي لپاره د جاپان هېواد په رسمي غوښتنه هغه هېواد ته سفر هم کړی ؤ.

د سيد مجيب احمد په غوښتنه او له پلان سره سم پولنډي موسسې د افغانستان په ښلاښلو سيمو کې د ښوونځيو د جوړولو تر څنګ په ښوونځيو کې د څښاک د اوبو د ستونزو د ليرې کولو لپاره د سلهاو ژورو څاګانو په جوړولو لاس پورې کړی، چې افغان ماشومان ترې برخمن شوي دي.

د يادونې وړ ګڼم، چې کله سيد مجيب احمد په ۲۰۰۲م کال کې هېواد ته راستون شو، نو د افغانستان د اداري سيستم د چارواکو لخوا ورته د کمپيوټري چارو په برخه کې د لوړپوړي چارواکي په توګه وړانديز وشو، خو سيد مجيب احمد دغه دندې و نه منلې او داسې يې ويل:

«په هېواد کې د ډېرو زياتو ناخوالو له کبله ما ونشوای کولی چې ښوونځی په خپل هېواد کې پای ته ورسوم، نو ځکه زه ټولې هلې ځلې د ښوونې او روزنې په برخه کې کوم، چې تر څو د هېواد ټول بچيان په دې وتوانېږي چې ښوونځی په خپل ټاټوبي او خپل هېواد کې پای ته ورسوي او له پوهې برخمن شي.»

درنو هېوادوالو ! ما هم د دغه کتاب په ليکلو هڅه کړې، چې د خپل ښوونکي سيد مجيب احمد يادون وکړم او د هغه د هيلو يوه وړه برخه پوره کړم، نو د هېواد



ماشومانو ته مې د اسلامي روکنونو په برخه کې دغه لنډ لاربنود وړاندې کړی، چې ماشومان ترې ګټه واخلي او ستاسو څخه یوه هیله لرم، چې د دغه کتاب په لوستلو سره زما د ښوونکي سید مجیب احمد لمر او د نورو وفات شوؤ وګړو روح ته دعا وکړئ!

بسم الله الرحمن الرحیم

اللهُمَّ انتَ السلامُ وَ منکَ السلامُ، تبَارَکتَ یَا ذَالجَلالِ وَالاِکرَامِ
اللهُمَّ اغفرلی وَلوَالدَی وَ لأستَاذِئ
وَلِجَمیع المُؤمنینَ وَالمُؤمنَاتَ وَ المُسلمینَ وَالمُسلِمَاتِ
بِرَحمَتِکَ یَاأَرحَمَ الراحِمِینَ*
أمین

و من الله التوفیق

# د لوی خدای په نامه

# اسلامي لارښوونه

هغه پاک او معصوم ماشوم چې په څېره کې یې د ایمان نور بربښي او نوی اوه کلن شوی وي او په اته کلنۍ یې پښه اېښې وي، نو د اسلام په اړه ورسره ګڼشمېر پوښتنې رامنځ ته کېږي، چې په ډېره مینه خپل پلار او یا ښوونکی پوښتي، چې ورته اسلامي لارښوونې وکړي او په دې تمه وي چې د پلار یا ښوونکی له اسلامي کړنو او پوهې نه ګټه واخلي او ځان پرې پوه کړي.

یو ماشوم وروسته له اووه کلنۍ د ځان په شخصیت جوړولو پیل کوي او د ټولنیز ژوند او اسلامي ارزښتونو په اړه پوهېدل غواړي، ځکه نو خپل پلار یا ښوونکی له ځینو پوښتنو سره مخامخ کوي:

پوښتنه: پلار جانه! زه اوس لوی شوی یم، ښوونځي ته ځم او مینه لرم چې یو با ایمانه وګړی شم او د خدای پاک عبادت وکړم، خو نه پوهېږم څنګه هغه ته عبادت او لمونځ وکړم؟

ځواب: ډېر ښه ګرانه! د شکر ځای دی، چې ته د اسلام په اړه مالومات غواړې او له خدای څخه مننه کوم چې یو څوک ستا په شان ښه اولاد ولري او بې له شکه حضرت محمد (ص) فرمایلي دي: «هر ماشوم





اصلاً مسلمان او په خدای مین زېږي، او دا مور او پلار دي چې له هغوی څخه یهودي، مسیحي یا مجوسي جوړوي.[1]»

ګرانه! ته هم په مسلمانه کورنۍ کې زېږېدلی یې او یو ښه مسلمان یې چې له تا څخه به خدای او رسول خوښ وي.

په پیل کې باید ووایم چې اسلام پنځه ستنې لري، هر مسلمان چې ځان ته مسلمان وایي، باید دغه پنځه ستنې ومني او هغه باید په صادقانه توګه ترسره کړي، نو هغه وخت به هغه یو با ایمان وګړی وي.

دغه ستنې د کلیمې ویل، د لمانځه ترسره کول، روژه نیول، زکات ورکول او د حج ترسره کول دي.




په دې ځای کې مخکې له دې چې د اسلام پنځه ګونې ستنې تا ته درو پېژنم، د قرآن پاک آداب درښیم، د قرآن پاک تلاوت هم ډېر ثواب

[1] «کل مولود یولد علی فطرت الاسلام فابواه یهودانه او ینصرانه او یمجسانه»

لري، نو ځکه ټول مسلمانان باید هغه ولولني او د قرآن کریم د لوستلو په آدابو باید پوه شي.

# د قرآنکریم د تلاوت آداب

له تلاوت نه مخکي د پاکوالي او نظافت پوره پوره خیال باید وساتل شي، له اوداسه پرته په قرآنکریم له لاس لګولو نه ځان په کلکه وساتئ، په پاک او صاف ځای کي کښېنئ او تلاوت وکړئ.

د تلاوت په وخت کي قبلي ته مخ کړئ د قاعدي په شکل کښېنئ یاني پلتری ووهئ او په ټیټ سر په پوره پام او د زړه له کومي او ادب سره تلاوت وکړئ. الله (ج) فرمایلي دي:

«کتاب انزلنه الیک مبارک لیدبروا ایته و لیتذکر اولو الالباب»

ژباړه: کتاب چي موږ تاسي ته درلېږلی له برکته ډک دی، چي هغوی پرې غور او فکر وکړي او د عقل ښتنان ترې پند حاصل کړي.

تر کومه ځایه چي کېدای شي د تجوید او ترتیل هم خیال وساتئ، حروف سم او صحیح اداء کړئ او په ورو ورو یې ولولئ، د رسول اکرم (ص) فرمان دی:

«په خپل آواز او لهجه قرآنکریم ښکلی کړئ.» (ابوداود)

رسول اکرم (ص) به یو یو حرف واضحه او یو یو آیت یې جلا جلا لوست، د نبی اکرم (ص) لارښوونه ده:

د قرآن تلاوت کوونکي ته به د قیامت په ورځ ویل کېږي، چي په څنګه ورو او ښه آواز تا ښکلی او ښایسته قرآن لوست، هماغسي قرآن ولوله او د هر آیت په بدله کي دي یوه درجه لوړېږي، ستا د اوسېدو ځای ستا د تلاوت وروستي آیت ته نږدې دی. (ترمذي)



د ماشومانو لپاره اسلامي لارښود

مه ډېر په لوړ آواز تلاوت کوئ او مه یې بیخي ورو لولئ بلکي په برابره اندازه تلاوت وکړئ، د خدای (ج) لارښونه ده:

«ولا تجهر بصلاتک و لا تخافت بها وابتغ بین ذالک سبیلا»

ژباړه: او په خپل لمانځه کي مه په ښکاره (جهر) تلاوت او مه یې ډوب ډوب کوئ، بلکي د دواړو په منځ کي لاره غوره کړئ.

د قرآنکریم تلاوت په ذوق او شوق او د زړه په مینه وکړئ؛ او دا باور ولرئ چي له قرآنکریم سره مینه له خدای (ج) سره مینه ده، نبی اکرم (ص) فرمایلي دي:

«زما د امت لپاره تر ټولو غوره عبادت د قرآن تلاوت دی.»

زیاتره وختونه د قرآنکریم په تلاوت مشغول اوسئ او هېڅکله د قرآنکریم له تلاوت نه مه ستړي کېږئ، نبی اکرم (ص) فرمایلي چي د خدای (ج) لارښونه ده:

کوم بنده چي د قرآن په تلاوت کي دومره مشغول وي چي له ما نه د دعا غوښتلو وخت و نه لري، نو زه ورته د دعا پرته، تر دعا غوښتونکو زیاته ورکوم. (ترمذي)

نبي اکرم (ص) فرمایلي:

بنده د قرآنکریم د تلاوت په وسیله خدای (ج) ته نږدې کېږي. (ترمذي)

محمد (ص) د قرآنکریم تلاوت ته د مومنانو د هڅولو لپاره دا هم فرمایلي دي:

«کوم سړي چي قرآنکریم ولوست او هره ورځ یې تلاوت کوي، د هغه مثال داسي دی لکه د مشکو ډک زنبیل چي د هغې خوشبویي ټولو خواوته خپرېږي او چا چي قرآن لوستی وي او بیا یې تلاوت نه کوي د هغه مثال داسي دی لکه د مشکو ډک بوتل چي سر پوښ یې بند کړای شوی وی. (ترمذي)

د قرآنکریم تلاوت یوازې د هدایت غوښتنې په خاطر وکړئ. خلک د ځان معتقد کول، خپل ځان په خلکو کې نامتو کول او د خپلې دینداري له شهرت نه په کلکه ځان وژغورئ. دا بې اندازې خرابې موخې دي او د دې موخو لرونکي د قرآن د تلاوت کوونکي له هدایت نه محروم او بې برخې وي.

هرکله چې وخت پیدا کړئ تلاوت وکړئ خو د تهجد لمانځه پر وخت د قرآنکریم د تلاوت کوښښ وکړئ. د دې وخت تلاوت تر نورو ټولو وختونو غوره دی او د مؤمن باید دا هیله وي چې د تلاوت تر ټولو غوره مرتبه حاصله کړي.

له دریو ورځو نه په کم وخت کې د قرآنکریم د ختمولو کوښښ مه کوئ، رسول اکرم (ص) فرمایلي دي:

چا چې له دریو ورځو نه په کم وخت کې قرآنکریم ولوست هغه بیخي قرآنکریم و نه پیژانده.

د قرآنکریم د عظمت او لویوالي احساس ولرئ او لکه څنګه مو چې د ښکاره چټلتیا د لرې کولو خیال ساتلی همداسې له زړه نه بد خیالونه، بې کاره وګڼئ او ناپاکې هیلې له زړه وباسئ، کوم زړه چې ناپاک او له بې کاره خیالاتو او ولولو نه ډک وي، په هغه کې نه د قرآن عظمت او پاکوالی کیناستلای شي او نه هغه د قرآن مجید په حقایقو او معارفو پوهیدای شي.

حضرت عکرمه (رض) به چې کله قرآن مجید بیرته کاوه نو زیاتره وختونه به بې هوشه کیده او فرمایل به یې دا زما د جلال او عظمت څښتن الله (ج) کلام دی.

د تلاوت پر وخت دا یقین په زړه کې وساتئ چې که د ځمکې پر مخ انسان ته هدایت په برخه کیدای شي، نو یوازې د همدې کتاب په





وسیله ممکن دی او د همدې ډول تصور له مخې د قرآن مجید د لوستلو پروخت فکر وکړئ او پر حقیقتونو او حکمتونو یې د پوهېدلو هڅه وکړئ. ژر ژر تلاوت مه کوئ، بلکې د ځان له پوهولو سره سره د قرآن کریم تلاوت خپل عادت وکرځوئ. او د غور او فکر کولو کوښښ وکړئ، حضرت عبدالله بن عباس (رض) به فرمایل چې زه د «القارعه» او «القدر» په څېر کوچني کوچني سورتونه له پوهې او تدبر سره لوستل تردې غوره ګڼم چې د «البقره» او «آل عمران» په څېر اوږدو اوږدو سورتونو تلاوت وکړم او پرې هېڅ پوه نه شم، نبی (ص) یو ځلې ټوله شپه هم دا یو آیت تکرار اوه:

إِن تُعَذِّبْهُمْ فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ وَإِن تَغْفِرْ لَهُمْ فَإِنَّكَ أَنتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ
(۱۱۸) (المائده)

ژباړه: ای خدایه که ته دوی په عذاب کړې، نو دا ستا بنده ګان دي او که ته دوی وبښې، نو ته خورا غالب او بې اندازې د حکمت څښتن یې.

له دې عزم سره د قرآنکریم تلاوت وکړئ چې زه باید له دې احکامو سره سم خپل ژوندون بدل کړم او د دې د لارښوونو په رڼا کې خپل ژوندون جوړ کړم او بیا چې کومې لارښوونې درته وشوې، له هغې سره د خپل ژوندون سمولو او له ګناهونو نه د خپل ژوندون د پاکولو پرله پسې کوښښ وکړئ. قرآن مجید به د آئینې (هېنداري) په څېر ستاسې هر داغ او خیرې تاسې ته در ښکاره کوي، نو اوس دا ستاسې کار دئ، چې تاسې له دغو خیرو، چرک او داغونو نه خپل ځان پاک کړئ.

د تلاوت په موده کې د قرآن مجید له آیتونو نه د اغیز اخستلو هم کوښښ وکړئ، چې کله د رحمت، مغفرت او د جنت د نعمتونو یادونې لولئ ښه خوشاله شئ او چې کله د خدای (ج) د قهر او غضب او د

جهنم د عذاب ویرونکي یادوني لولئ نو پکار ده چي بدن مو وربږدي، اوښکي مو بي اختیاره له سترګو را رواني شي او زړه مو د ملامتیا پر توبو وژاړي، چي د مؤمنانو د بریالیتوبونو حالات لولئ، نو پکار ده چي څېره مو وغوړېږي او چي کله د قامونو د تباهي او بر بادۍ حالات لولئ نو غمجن شئ، چي د وعید او ویري آیتونه لولئ، نو ویښتان مو باید پر بدن ودرېږي او چي د زیري او بشارت آیتونه تلاوت کوئ، نو روح مو پکار ده د شکر پر ولولو خوشاله شي.

له تلاوت نه وروسته دعا وکړئ، د حضرت عمر (رض) د دعا الفاظ دا دي:

«اللهم ارزقني التفکر و التدبر بما یتلوه لساني من کتابک و الفهم له، والمعرفة بمعانیه والنظر فی عجائبه و العمل بذالک ما بقیت، انک علی کل شئ قدیر»

ژباړه: خدایه ! زما ژبي چي ستا له کلام نه څه تلاوت کړی، توفیق را کړي چي زه په کي غور او فکر وکړم، الهي ماته پکي پوهه راکړي، ماته یي د مفهوم او معانیو پیژندنه را په برخه کړي اود عجایباتو د میندلو سترګي او لید یي راکړي، او تر څو چي ژوندی یم توفیق راکړي چي زه پري عمل وکړم، بي شکه چي ته پر هر څه قادر یي.[2]

[2] اصلاحي، مولانا محمد یوسف: په اسلام کي د ژوندانه آداب: د الهدی اداره، پېښور: ۱۳۷۱ ، ژباړه: سیدفضل مولا لټون





# کلیمه

کلیمه د اسلام لومړۍ ستنه (رکن) ده چي هر مسلمان باید هغه ولوني او په هغي بشپړ ایمان ولري. دلته زه د طیبي کلیمه او شهادت کلیمه لیکم، تاسو یي له یاده زده کړئ او هر کله یي د ځانه سره ولونئ.

**د طیبي کلیمه:**

«لاَاِلٰهَ الا الله مُحَمّدُ رَسُولِ الله»

ژباړه: خدای (ج) یو دی او محمد (ص) د هغه استازی دی.

د شهادت کلیمه:

«اَشهَدُ أَنْ لاَاِلٰهَ الا اللهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِیکَ لَهُ وَ اَشْهَدُ اَنّ مُحَمّداً عَبْدُهُ وَ رَسولَهَ»

ژباړه: شاهدي ورکوم چي خدای یو دی او شریک نه لري او شاهدي ورکوم چي محمد(ص) د هغه بنده او استازی دی.

# لمونځ

لمونځ د اسلام دویمه ستنه (رکن) ده، آیا تاسو په دي پوهېږئ چي لور او زوی باید په اوه کلنۍ کي لمونځ وکړي، چي د هماغه سن څخه ښه او سالم شخصیت تولني ته وړاندي شي؛ او آیا تاسو په دي پوهېږئ چي محمد(ص) فرمایلي: «په ماشومتوب کي ماشومانو ته د دین اصول، د اسلام ارکان او شرعي احکام ورزده کړئ.» د بېلګي په توګه حضرت محمد (ص) فرمایلي دي: «کله مو چي ماشومان اوه کلن شول نو هغوی لمانځه ته وهڅوئ، او کله چي هغوی لس کلن شول

هغوی تنبع کړئ (ولمسوی) چې لمونځ اداء کړي او د هغوی ځای بېل کړئ.[3]»

ګرانو ماشومانو د همدې لپاره تاسو باید سر له اوسه د خدای عبادت وکړئ او په دې پوه شئ چې پلار، مور، خپلوان او ښوونکي د ماشومانو د ژوند مسؤلیت لري. خو کله چې ماشوم لوی شي باید خپله شرعي احکام او دساتیر زده او ترسره یې کړي.

له هر مسلمان ماشوم سره داسې پوښتنې، چې دیني احکام او دساتیر په څو کلنۍ او په چا فرض دي پیدا کېږي، نو پلار، مور او یا ښوونکی مسؤلیت لري چې باید سم ځواب ماشوم ته ورکړي او ورته یې تشریح کړي.

لمونځ او د اسلام نور احکام په هغه مسلمان چې عاقل، بالغ او پاک وي، فرض دي. مګر په کافر، لېوني، ماشوم او هغه ښځه چې د حیض یا نفاس په حالت کې وي فرض نه دي. مګر په هغه چا چې اول مسلمان او بیا کافر شي (مرتد) او یا قصدي او پخپله هیله لېونی یا بېهوش شي، لمونځ فرض دی، که چېرې په وخت لمونځ نه کوي باید قضا یې اداء کړي.

اسلامي علما وایي چې په نرینه وو کې د بلوغ نښه احتلام (په خوب کې د مني وتل) دي چې معمولاً په ۱۵ کلنۍ کې پېښېږي او په ښځینه وو کې حیض (میاشتنی عادت) دی چې معمولاً وروسته له ۱۲ کلنۍ څخه پیل کېږي. په حنفي مذهب کې هر وګړی چې ۱۵ کلنۍ ته ورسېږي بالغ ګڼل کېږي.

هر با ایمانه ماشوم په دې فکر کې وي چې مسلمان دی او په دې هڅه کې وي چې باید الهی عبادات په ښه توګه ترسره کړي او هلې ځلې

[3] د حاکم او ابو داود له روایت څخه





کوي چې هر هغه څه چې ترسره کوي باید په سمه توګه یې زده کړي. په دې برخه کې ستاسو پام د یو ماشوم او پلار خبرو اوسپارښتونو ته رااړوم.

پوښتنه: پلاره زه اوس د ماسپښین لمانځه د ترسره کولو لپاره تیاری لرم، تاسو ماته لارښوونه وکړئ تر څو یې ترسره کړم.
ځواب: ډېر ښه زویه! لکه څنګه چې د لمانځه یو شرط پاکي ده، د همدې کبله د ټولو څخه مخکې لومړی اودس باید سم زده کړې، نو ځکه له اوداسه څخه پیل کوؤ.

## اودس

اودس د ځان د پاکی لپاره تر سره کېږي. پرته له اوداسه لمونځ سم نه دی. مسلمان باید له رفع حاجت څخه وروسته موضع په کاغذ تشناب او یا لوټه پاکه کړي، که کله فضله مواد له ځای څخه یې تیت شوي وؤ نو استنجاء واجب او که نه سنت ده. مګر هغه څوک چې د جنابت او یا هغه ښځه چې د حیض او یا نفاس په حالت کې وي، د دغه حالت په ختمېدو کې باید غسل وکړي. وروسته بیا اوداسه ته وار رسي چې هغه هم په لاندې ډول ترسره کېږي.

## د اوداسه ځانګړتیاوې

۱- لومړی په زړه کې د خدای د خوښــې او اوداسه نیت وکړه:
«نیت کړم چې اودس ترسره کړم تر څو له نجاست څخه پاک،
خدای (ج) ته نږدې شم او لمونځ پرما روا شي.»

وروسته له نيته «بسم الله الرحمن الرحيم» ووايه او بيا خپل لاسونه تر مړونده پريمينځه[4]



۲- درې ځلې خپله خوله په اوبو پريمينځه او غاښونه مسواک کړه. کله چې مسواک نه وي د شهادت (سبابه) په ګوته خپل غاښونه پاک کړه.



۳- درې ځلې خپله پزه په اوبو پريمينځه.

[4] د هرې کړنې د ښه ترسره کولو لپاره نيت اړين دی او اودس هم يوه ديني کړنه ده، نو ځکه د اودا سه لپاره نيت ښه دی.







۴- درې ځلې مخ پريمينځه او طيبه کلمه ووايه. څوک چې ږېره ږيره لري بايد خپلې ګوتې تر ږيرې لاندې او مخ ته ورسوي او هغه ومومښي.

لاَاِلٰهَ الا الله مُحَمّدُ رَسُولِ لله



۵- اول ښی او بيا کيڼ (چپ) لاس تر څنګل (آرنج) پورې درې ځلې پريمينځه. که کله مو ګوتې او يا ښځو نور ښځينه زيورات په لاس

کړي وي نو د هغې ځای دې وښوروي تر څو اوبه د پوست سر ته ورسي.



۶- لاسونه په اوبو لامده او خپل سر مسحه کړه، په دې ښه چې لاسونه له تندې څخه څټ خوا ته یوسې او مسحه یې کړې بیا لاسونه واړوه او د سر پاتې برخه مسحه کړه.



۷- په لمدو لاسونو خپل غوږونه او غاړه مسحه کړه.

۸- لومړی ښی او بیا کیڼه (چپه) پښه تر ښنګري (بجلک) درې ځلې پریمینځه او په خپله کوچنۍ ګوته د پښو د ګوتو منځ پاک کړه.







داوداسه له بشپړېدو وروسته د لاندینۍ دعا د ویلو سپارښت کېږي:

اَشهَدُ أَنْ لاَاِلٰهَ الااللّٰهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِیکَ لَهُ وَ اَشْهَدُ اَنّ مُحَمّداً عَبْدُهُ وَ رَ سولَهَ اَللّهُمّ اجْعَلْنِی مِنَ التّوّابِینَ وَ اجْعَلْنِی مِنَ الْمُتَطَهِّرِینَ.

(د مسلم او ترمذي څخه روایت)

ژباړه: شهادت ورکوم چې خدای یو او شریک نه لري او شهادت ورکوم چې محمد(ص) د هغه بنده او را استول شوی دی. خدایه ته ما د پاکانو او توبه ګارانو په ډله کې وشمېرې.

د یادونې وړ ده چې اودس باید پرله پسې ترسره شي یعنې د کړنو (د غړو د مینځلو) تر مینځ وخت یې زیاد نشي.

- د اذان، تکبیر، د خطبې لوستلو، د دین تعلیم، د خدای ذکر، د خوب څخه د ویښېدو، د عرفات په میدان کې تمېدل، په صفا او مروه کې د ګرځېدو او د ډوډۍ څخه مخکې وختونو کې اودس سنت دی. دا به ښه وي چې څوک هر وخت اودس ولري.

- د ټولو لمونځونو لکه فرض، واجب، سنت، نفل، جنازه او د قرآن د تلاوت د سجدې لپاره اودس فرض دی.
- د کعبه له تاوېدو څخه او قرآن ته د لاس وروړو لپاره اودس واجب دی.
- د غسل او ویده کېدو څخه مخکې اودس سنت دی.

پوښتنه: ګرانه پلاره ! په اوداسه کې کوم شیان فرض، کوم سنت او کوم مستحب دي.
ځواب: له دې نه چې دین ته علاقه ښکاره کوې ډېر خوښ یم. اوس په واضح توګه د اوداسه فرضونه، سنتونه او مستحبونه درته وایم.

## د اوداسه فرضونه:

۱- د مخ مینځل (د یوه غوږ د نرمې څخه د بل غوږ تر نرمې او د ویښتانو (د پای څخه د زنې تر لاندې) پورې.
۲- د لاسونو مینځل تر څنګل (آرنج) پورې.
۳- د سر د څلورمې برخې مسحه.
۴- د پښو مینځل تر ښنګري (بجلکه) پورې.

## د اوداسه سنتونه:

۱- د لاسونو مینځل تر مړونده پورې.
۲- د «بسم الله الرحمن الرحیم» ویل د لاسونو د مینځلو پر وخت.
۳- د خولې مینځل او د غاښونو مسواک کول.
۴- د پزې مینځل(استنشاق).
۵- د غوږونو مسحه.





۶- د ګوتو په مرسته د ږیرې خلال (یعنې په لمدو ګوتو د ږیرې لمدول).
۷- د لاس په کوچنۍ ګوته د پښو د ګوتو د مینځ پاکول.
۸- درې ځلې د هرې برخې مینځل.
۹- د ټول سر مسحه.
۱۰- د اوداسه په پای کې د پورتنۍ ذکر شوې دعا ویل.
۱۱- د اعضاو په ترتیب سره مینځل.
۱۲- د اعضاو پرله پسې مینځل.

## د اوداسه مستحبونه:

۱- نیت
۲- په اوداسه کې د پورته یاد شوي ترتیب ته پام نیول.
۳- د لاس او د پښو د ښۍ خوا مینځل په لومړي ځل او بیا د کیڼې (چپې) خوا پرېول.
۴- د غاړې مسحه.

اودس تر هغه سم دی چې مات نشي، که کله اودس مات شي بیا اودس سم نه دی او د اوداسه د ماتېدو سببونه په لاندې ډول دي:
۱- د انسان له مخه (میتیازې) یا څټه د څه شي (باد یا فضله مواد ) وتل.
۲- کانګه کول (استفراق) دومره چې خوله له کانګې ډکه کړي.
۳- وینه، چرک یا نور شیان چې له بدن څخه خارجېږي او د بدن بل ځای ته سرایت کوي.
۴- خوب چې سړي په څه شي تکیه کړي وي. داسې تکیه چې کله لرې شي هغه سړی ویښ شي.
۵- بې سدې یا بېهوشي.

۶- د لمانځه په وخت کې په لوړ غږ (قهقه) خندل.

۷- ليونتوب

پوښتنه: پلار جانه! د اوداسه اوبه بايد څنګه وي؟

ځواب: د راده، حوض، چينې، پمپ، باران او واورې په اوبو اودس کېږي مګر د مېوې، شربت، سرکې، ګلاب، شوروا او داسې نورو، په اوبو اودس نه کېږي. هغه اوبه چې چټلې يا يو ځل ترې کار اخيستل شوی وي د کارولو نه دي.

# تيمم

پوښتنه: پلار جانه! که چېرته په کوم ځای کې اوبه نه وي او يا هم څوک د اوبو د کارولو څخه زيانمن شي، نو څه وکړي؟

ځواب: په دغسې حالاتوکې کولای شي د اوبو پرځای په پاکه خاوره تيمم وکړي، په پاکه خاوره اودس کولوته تيمم وايي. تيمم هغه چاته چې ناروغه وي، يعنې د اوبو د کارولو نه زيانمن شي يا اوبه ورڅخه يو مايل لرې وي او ونشي کولای هغه ته لاس رسی پيدا کړي، جايز دی.

پوښتنه: پلارجانه! تيمم په سمه توګه څنګه ترسره کېږي؟

ځواب: تيمم په دې ښه ترسره کېږي:

په تيمم کې نيت فرض دی. نوځکه بايد د ټولو د مخه داسې نيت وکړي:

«نيت کړم چې تيمم ترسره کړم ترڅو له نجاست څخه پاک،
خدای (ج) ته نږدې شم او لمونځ پرما روا شي.»





وروسته له نيته «بسم الله الرحمن الرحيم» ووايه او بيا د خپلو لاسونو ورغوی په پاکه خاوره يا لکه خاوره غوندې شي (خښته، تيږه، شګه، ګچ، رانجه او ......) ووهه او خپل مخ پرې مسحه کړه. وروسته بيا د دويم ځل لپاره خپل لاسونه په خاوره ووهه، لومړی خپل ښی لاس د کيڼ لاس په ورغوي د ګوتو له څوکو د څنګل تر څټه او بيا کيڼ لاس د ښي لاس په ورغوي مسحه کړه.

هغه شيان چې اودس ماتوي هماغه شيان تيمم هم ماتوي. تيمم په لرګي، وسپنه، سره زر، سپين زر، مس، ښيښه، ذغال، کاغذ، نيلون او نورو پلاستيکي اجناسو باندې چې د خاورې له جنسه نه دي، نه ترسره کېږي.

# مسحه

پوښتنه: ګرانه پلاره! د بوټانو يا د ځان د ټپي شوې برخې مسحه څنګه ترسره کېږي؟

ځواب: ګرانه زويه! څوک چې کله غواړي اودس وکړي، کولای شي د بوټانو (په دې شرط چې تر ښنګري پورې وي) په سر مسحه وکړي. خو بايد له اغوستو څخه مخکې يې پښې پاکې مينځلې وي او پښې يې له بوټانو نه وي ايستلې. دغه کړنه (عمل)، د مسافر لپاره درې ورځې[6] او د مقيم لپاره يوه ورځ جايزه ده.

[5] په الهدايه کتاب کې راغلي کله مو چې تيمم وکړ کولای شئ په هغې څومره چې وغواړئ فرض يا سنت لمونځونه وکړئ او په هغه کې کوم محدوديت نشته «ويصلی بتيممه ماشاء من الفرائض و النوافل» د کتاب د بيا ليکنې د پايځوړ څخه

[6] احنافو د مسافرت حدود ۸۹ کيلومتره ټاکلې دي.

د مسحې ماتېدونکي شيان هماغه د اوداسه ماتېدونکي څيزونه دي.
که چېرې مسحه ماته شي نو بايد پښې ببرته له سره پريمينځل شي.
د ځان په هغه برخه چې ټپي يا ماته شوې وي مسحه جايز ده او د پښو مسحې غوندې ده، يعنې د اوداسه په وخت کې ټپي يامات ځای مسحه کړئ.

# اذان او اقامت

پوښتنه: پلار جانه ! داسې ويل کېږي چې د لمانځه نه مخکې اذان او اقامت شته که تاسو د هغې د حکمت او ځانګړتياوو په اړه څه وايئ؟
ځواب: هوزويه ! اذان اصلاً د لمانځه د وخت د رارسيدو اعلان دی چې يو مسلمان يې نوروته کوي او ځانګړي کلمات لري. اذان د پنځوګونو لمونځونه او د جمعې د لمانځه لپاره سنت دی. څوک چې غواړي اذان ووايي، مخ قبلې ته اړوي او خپلې ګوتې د غوږ په نرمه برخه ايږدي او وايي:
اَللّٰهُ اَکْبَرْ(څلور ځلې)
خدای متعال او تر هر څه لوی ذات دی
اَشْهَدُ اَنّ لَا اِلَهَ اِلا اَللّٰه(دوه ځلې)
شهادت ورکوم چې خدايي، يوازې د واحد خدای لپاره ده بل چاته نه ده
اَشْهَدُ اَنّ مُحَمّدُاً رَسُوْلُ الله (دوه ځلې)
شهادت ورکوم چې حضرت محمد د خدای رااستول شوی پيغمبر دی
حَيْ عَلَی الصّلَاة(دوه ځلې)





د لمانځه لوري ته راشئ
حَيْ عَلَی الفَلَاحْ(دوه ځلې)
د ځان ژغورنې (رستګاری) لوري ته راشئ
اَللّٰهُ اَکْبَرْ(دوه ځلې)
خدای متعال او تر هر څه لوی ذات دی
لَا اله الا الله
بې له اَلله نه هېڅ خدای نشته.

مؤذن (اذان ويونکی) بايد د « حَيْ عَلَی الصّلَاة» په وخت کې مخ ښی خواته او د « حَيْ عَلَی الفَلَاحْ »په وخت کې مخ کيڼې خواته واړوي.
د سهار په اذان کې وروسته له « حَيْ عَلَی الصّلَاة»څخه «الصلاة خير من النوم»يعنې لمونځ له خوب نه ښه دی،ويل کېږي. وروسته پاتې اذان ويل کېږي.
د « حَيْ عَلَی الصّلَاة»او « حَيْ عَلَی الفَلَاحْ» په اورېدو سره اورېدونکی بايد په آرام غږ «لا حول و لا قوة الابالله» ووايي. د سهار په لمانځه کې د «الصلاة خير من النوم»په ځواب کې «صَدَقْتَ وَ بَرِرْتَ» ووايي. د اذان په پای کې دغه مسنونه دعا ووايي:
«اَللّهُمّ رَبّ هَذِه الدّعْوَة التّامَة وَ الصّلاة القائمَة،آت مُحَمّداً الْوَسيلَة وَ الْفَضيلَة وَ الدَرَجة الرَفيعة وَ ابْعَثْهُ مَقاماًمَحْمُوداً الذی وَعَدْتَهُ وَ ارْزُقْنَا شَفَاعَتَهُ.»(بخاري)

ژباړه: خدايه ! ددغه کامل دعوت او ترسره شوي لمانځه په حق کې، محمد(ص) ته فضيلت او رفيع درجه ورکړې او هغه ته هغه د

محمودي مقام ورکړې چې تا ورسره وعده کړې، د هغې شفاعت زموږ په نصيب وګرځوې او ته هيڅ کله وعده خلافي نه کوې.

اقامه هم دلمانځه دپيل څخه وړاندې په جومات کې د حاضرو مقتديانو لپاره ويل کېږي او الفاظ يې هماغه شان لکه اذان دي، مګر وروسته له «حی علی الفلاح» څخه «قد قامت الصلاة» دوه ځله ويل کېږي.

د اذان او اقامې تر مينځ بايد زماني واټن شته وي، يوازې د ماښام په لمانځه کې وروسته له اذان څخه اقامه ويل کېږي. د اقامې او اذان ويل پرته له اوداسه مکروه دي.

## لمونځ

له اوداسه او اذان څخه وروسته د لمانځه اداء کولو ته وار رسېږي. نو بايد لمونځ سم زده او تر سره شي، نو ځکه د هر مهال د لمانځه سم تر سره کول ډېر غوره ګڼل کېږي.

## دلمانځه شرطونه

پوښتنه: پلار جانه! هيله کوم ماته هغه شرطونه ووايه کوم چې بايد تر لمانځه مخکې او د لمانځه په وخت کې په پام کې ونيول شي؟

ځواب: ډېر ښه ګرانه زويه، د ښه لمانځه د ترسره کولو لپاره اسلام ځينې شرطونه لري چې په لاندې ډول دي:

اودس، دځان پاکوالی، دکاليو پاکوالی، دلمونځ د لوستلو د ځای پاکوالی، دعورت پوښول، نيت، دلمانځه د لوستو وخت او د قبلې لورې ته درېدل.





يعنې لمونځ کوونکی بايد جُنب نه وي او اودس هم ولري، ځان، کالي او دلمونځ لوستلو ځای بايد چټل نه وي، عورت يې پوښول شوی وي او دلمانځه وخت را رسيدلی وي، د لمونځ کولو نيت ولري او دقبلې په لورې ودرېږي.

که څوک په بيړۍ (کښتۍ) يا په الوتکه (طياره) کې وي، او دلمانځه د قضا کېدو امکان رامنځ ته شي، نو هغه دې لمونځ وکړي، که څه هم د بېړۍ يا الوتکې سمت او جهت تغير کوي.[7]

که کله چا د قبلې لوری ونه موند او نه يې هم څوک پيدا کړل چې ترې وپوښتي، نو په خپل حدس دې يوه لورې ته ودرېږي، لمونځ دې ترسره کړي. که د لمانځه له ترسره کولو وروسته وپوهيد چې لمونځ يې غلط لورې ته ترسره کړی، پروا نه لري. خو که د لمانځه د لوستلو په وخت کې وپوهيد نو خپل لوری دې وګرځوي.

## د لمانځه وختونه

پوښتنه: پلار جانه! آيا امکان لري چې راته د پنځه ګونو لمونځونو وختونه راوښيې او راته ووايې چې په کومو وختونو کې لمونځ مکروه دی؟

ځواب: ګرانه زويه! دسهار د لمانځه وخت د صادق سهار له سپرغي (سپېده دم) څخه تر سباوونه (طلوع) پورې دی.

[7] په بيړۍ (کښتۍ)، الوتکه (طياره)، حيوان او يا بل څيز باندې لمونځ کول پرته له شرعي عذر څخه جواز نه لري او يوازې کولای شي نفل لمونځونه اداء کړي، بدون د عذر څخه لمونځ په سواره حالت کې جواز نه لري.

د ماسپښین لمونځ د هغه وخت څخه چې لمر د آسمان له نیمايي اووښتی او لویدیز (مغرب) خواته نژدې شي، پیل کېږي او تر هغه وخت دی چې د یو شي سېره، دوه برابره شي.

د مازدیګر لمونځ د ماسپښین لمونځ د ختمېدو څخه دلمر تر لوېدو (غروب) پورې دی.

د ماښام لمونځ د لمر له لوېدو (غروب) څخه د شفق تر لوېدو (غروب) پورې او د ماسختن لمونځ د شفق له لوېدو (غروب) څخه دصادق سهار تر سباوونه (طلوع) پورې دی.

خو په دریو لاندینیو وختونو کې لمونځ کول که سنت وي او که فرض او که دتلاوت سجده هم وي، تحریمي مکروه دی.

۱.کله چې لمر راپورته کېږي تر هغه وخته چې زیړی یې بشپړ شوی نه وي او دلمر رڼا تر هغه چې بشپړه نه وي څرګنده شوې.

۲. د غرمې له ۱۲بجو څخه تر هغه وخته چې لمر د ناستې (مغرب) خواته نه وي مایل شوی. (زوال)

۳. په هغه وخت کې چې لمر ورو ورو سور رنګ اخلي او مخ په ناستې (غروب) وي.

یادونه: د سهار په لمانځه کې لومړی دوه سنته او بیا دوه فرضه ویل کېږي، د ماسپښین په لمانځه کې لومړی څلور رکعته سنت، بیا څلور رکعته فرض او په پای کې دوه رکعته سنت ویل کېږي. د مازدیګر لمونځ څلور رکعته فرض دی. د ماښام په لمانځه کې لومړی دري رکعته فرض او بیا دوه رکعته سنت تر سره کېږي. د ماسختن په لمانځه کې لومړی څلور رکعته فرض، بیا دوه رکعته سنت او په پای کې دري رکعته وتر واجب لمونځ تر سره کېږي.







## د لمانځه د ترسره کولو ترتیب:

اوس ماسپښین دی او لمونځ کوونکی سړی باید لاندې ترتیب په پام کې ونیسي:

۱. دماسپښین د لمانځه د څلور رکعتو فرضو د ترسره کولو نیت په زړه کې ولري. دا به ښه وي چې په ژبه هم نیت ووایي او داسې نیت وتړي:

« نیت مې کړی دزړه له اخلاصه، اداء کوم څلور رکعته فرض لمونځ په دې حاضر وخت د ماسپښین، مخ مې دکعبې شریفې په لوري، خاص الله لپاره، الله اکبر» او لاسونه سر ته پورته کړه، بټه ګوته د غوږونو له نرمۍ سره ونښلوه.



۲. وروسته له نیته په ښي لاس کیڼ لاس ونیسه او دنامه لاندې یې کېږده، او وروسته بیا لاندې دعا ووایه:

«سُبْحَانَک اللّهُمّ وَ بِحَمْدِک وَ تَبارَک اسْمُکَ وَ تَعَالی جَدُّکَ وَ لاَ الٰهَ غَیْرُکَ»





ژباړه: خدایه ! پاکي ستا لره ده، او موږ ستا ستاینه کوؤ، ستا نوم با برکته او ستا شأن عظیم دی، ستاینه او حمد ستا د لوی والي لپاره دی، هیڅ معبود پرته له تا نشته.

که څوک په جومات کې لمونځ کوي یعنې مقتدي وي چوپ دې ودرېږي او سورة فاتحه ته دې په آرامه غوږ ونیسي. د دې سورة په پای کې دې «آمین» ووایي.



خو کله چې مقتدي نه وي، بیا دې:

« اعُوذُ بِاللّهِ مِنَ الشّیْطانِ الرّجِیمِ»

ژباړه: له شړل شوي شیطان څخه خدای(ج) ته پناه وړم.

« بسم الله الرحمن الرحیم»

ژباړه: دلوی او ښنونکي څښتن تعالی په نامه

وروسته بیا سورة فاتحه او دقرآن پاک یوه بله سورة یا څو آیتونه لوستل کېږي.

# د فاتحې سورة

الْحَمْدُ للّه رَبّ الْعَالَمِينَ (۱) الرّحْمنِ الرّحِيمِ (۲) مَالِک يَوْمِ الدّيِنِ (۳) إِيّاکَ نَعْبُدُ وإِيّاکَ نَسْتَعِينُ (۴) اهدنَــا الصِّرَاطَ المُستَقِيمَ (۵) صِرَاطَ الّذِينَ أنعَمتَ عَلَيهِمْ «۶» غَيرِ المَغضُوبِ عَلَيهِمْ وَلاَ الضّالّينَ (۷) امين.

ژباړه: ستاينه هغه خداى لره ده چې ددې نړۍ خاوند دى*ښښونکى او مهربانه دى*د جزا د ورځې خاوند دى*يوازې تا ته عبادت کوؤ او يوازې له تا څخه مرسته غواړو*موږ ته د سمې لارې هدايت وکړه*د هغو کسانو لاره چې تا نعمت ورکړى*او نه د هغو کسانو لاره چې ته پرې په قهر شوى يې او له لارې وتلي دي.*

## بله سورة:

قُلْ هُوَ اللّهُ أَحَدٌ (۱) اللّهُ الصّمَدُ (۲) لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ (۳) وَلَمْ يَكُن لّهُ كُفُواً أَحَدٌ (۴)

ژباړه: ووايه خداى يو دى* غني او بې نياز دى* څوک له هغه څخه نه دي زيږيدلي او نه دى له چا څخه زيږيدلى دى* او هيڅوک د هغه په شان نشته، يوازې او يو دى.

کوچنۍ سورة يا د قرآن پاک څو آيتونه د فرض لمونځونو په دوؤ لومړيو رکعاتو او د سنت او نوافلو په ټولو رکعاتو کې ويل کيږي. خو دفرض لمونځونو په دوؤ وروستيو رکعاتو (ماسپښين، مازديګر، ماښام او ماسختن) کې يوازې د فاتحې سورة لوستل کيږي.





۳. د «الله اکبر» په ويلو رکوع ته ټيټ شه خپل لاسونه په ګونډو کيږده (رکوع) او درې ځلې «سُبْحَانَ رَبّیَ الْعَظِيمِ» يعنې «زما خداى لوى، پاک او منزه دى» کولاى شې «سُبْحَانَ رَبّیَ الْعَظِيمِ» له دريو څخه هم زيات ولولې مګر بايد طاق وي يعنې ۵، ۷، ۹ وي.



۴. وروسته بيا نيغ ودريږه او خپل لاسونه خوشې کړه او ووايه:

«سَمِعَ اللّهُ لِمنْ حَمِدَهُ، رَبّنَا لَکَ الْحَمْدُ»

ژباړه: «خداى د هغې چا ستاينه اوري چې هغه ستايي، اى خدايه! شکران او ستاينه ستا لپاره ده»

که کله مقتدي وې فقط «رَبّنَا لَکَ الْحَمْدُ» ووايه.



۵. بیا «الله اکبر» ووایه او سجدې ته کښته شه، یعني لومړی ګونډې، بیا لاسونه او وروسته بیا تنډه او پزه په ځمکه کېږده. ګوتې باید په عادي حالت کې د قبلې لورې ته او دواړه لاسونه د مخ په دواړوخواو کې موازي کېښودل شي. څنګل (آرنج) او لیچې (ساعد) باید له ځمکې نه فاصله ولري او خېټې ته نږدې نه وي. د پښې ګوتې باید په ځمکه او قبلې خواته وي. په دې حالت کې درې ځلې «سُبْحَانَ رَبّیَ الا َعْلی» یعني (د ټولونه ښه پاک او منزه خدای دی) ووایه، خو «سُبْحَانَ رَبّیَ الا َعْلی» کیدای شي زیات شي، مګر باید طاق وي، یعنې ۳، ۵، ۷، ۹ وي.







۶. وروسته له سجدې څخه په ترتیب تنډه، پوزه او لاسونه پورته کړه او کېنه، داسې کېنه چې ښۍ پښه ولاړه او کیڼه (چپه) پښه پرته وي. لاسونه په ګونډو داسې کېږده چې ګوتې په ګونډو راشي.



۷. د «الله اکبر» په ویلو سره بیا سجدې ته کښته شه او درې ځلې «سُبْحَانَ رَبّیَ ٱلاَ عَليَ» ووایه.

۸. وروسته له «الله اکبر» څخه دويم رکعت، د لومړي رکعت په شان ولونه. د دويم رکعت له سجدې څخه وروسته په ځای کېنه او تشهد ولونه.

## تشهد

«اَلتَّحِيّاتُ لِلّٰهِ وَ الصَّلَواتُ وَالطَّيِّباتُ السَّلامُ عَلَيْکَ اَيُّهَا النَّبِيُّ وَ رَحْمَةُ اللّٰهِ وَ بَرَکَاتُه، اَلسَّلامُ عَلَيْنَا وَعَلٰى عِبادِ اللهِ الصّالِحِين، اَشْهَدُ اَنْ لاٰاِلٰهَ اِلاّ اللهُ وَ اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّداً عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ»

ژباړه: هر راز ستاينې (قولي، بدني او مالي) يوازې د خدای لپاره دي. سلام او درود دې وي پرتا باندې چې د خدای رااستول شوی پيغمبر يې او د خدای رحمت اوبرکت دې هم پرتا وي، سلام دې پرما او دخدای په نيکو کارو بندګانو وي. شهادت ورکوم چې له «الله» پرته بل خدای نشته او محمد دهغه بنده او رااستولی پيغمبر دی.

۹. د «الله اکبر» په ويلو سره پاڅېږه او دريم او څلورم رکعت هم د لومړي او دويم په شان ترسره کړه، يوازينی توپير پکې دا دی چې کله فرض وي، نو يوازې سورة فاتحه بس ده او نور آيتونه ورسره نه لوستل کېږي.
دڅلورم رکعت د دويمې سجدې څخه وروسته د دويم تشهد څخه وروسته درود او حسنه دعا په لاندې ډول لوستل کېږي.

## درود





اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَ عَلٰى آلِ مُحَمَّدٍ کَمَا صَلَّيْتَ عَلٰى اِبرَاهِيْمَ وَ عَلٰى آلِ اِبْرَاهِيْمَ اِنَّکَ حَمِيْدٌ مَجِيْدٌ*

ژباړه: ای خدايه! پر محمد او امت يې رحمت واستوه لکه چې په ابراهيم او امت دی استولی دی، په رښتيا سره چې ته لوی او د ستاينې وړ يې.

اَللّٰهُمَّ بَارِکْ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَ عَلٰى آلِ مُحَمَّدٍ کَمَا بَارَکْتَ عَلٰى اِبرَاهِيْمَ وَ عَلٰى آلِ اِبْرَاهِيْمَ اِنَّکَ حَمِيْدٌ مَجِيْدٌ*

ژباړه:ای خدايه! پر محمد او امت يې برکت واستوه لکه چې په ابراهيم او امت دې استولی دی، په رښتيا سره چې ته لوی او د ستاينې وړ يې.

## حسنه دعا

«رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيا حَسَنَةً وَ فِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً وَ قِنَا عَذَابَ النّارِ»

ژباړه: ای پروردګاره! پر موږ په دنيا او په آخرت نيکي او حسنات نازل کړه او موږ د دوزخ له عذابه لرې وساته.

۱۰. وروسته بيا ښی خواته مخ وګرځوه او ووايه:
«اَلسَّلامُ عَلَيْکُمْ وَرَحْمَةُ الله»
ژباړه: دخدای درود او سلام دې پرتاسو باندې وي



۱۱. بیا کیڼې (چپې) خواته مخ وګرځوه او هماغه کلمات تکرار کړه.

« اَلسّلامُ عَلَیْکُمْ وَرَحْمَةُ الله »

ژباړه: د خدای درود او سلام دې پر تاسو باندې وي



## له سلام څخه وروسته دعا

«اَللّٰهُمَّ اَنْتَ السَّلامُ وَمِنْکَ السَّلامُ وَاِلَیْکَ یَرْجِعُ السَّلامُ، تَبارَکْتَ رَبَّنَا وَتَعَالَیْتَ یاذَا الجَلالِ وَالاِکْرامِ»

ژباړه: یا خدایه تا سوله رامنځ ته کړې او سوله له تا پیل شوې او ته پاک ذات یې، ته د حیثیت او د عزت خاوند یې.





که وروسته له لمانځه څخه په ځانګړې توګه وروسته له فرض لمانځه څخه دعا وکړئ او د خپل ځان او نورو ټولو مسلمانانو د ښېګڼې او نېکمرغي غوښتنه وکړئ نو تاسو به ښه او صالح عمل ترسره کړی وي.



## د ښځو د لمانځه ځانګړتیاوې

د ښځو لمونځ هم د نارینه وؤ په شان دی، یوازې په لاندنیو ټکوکې توپیر (فرق) لري.

* دلمانځه په پیل کې د (الله اکبر) په ویلو سره لاسونه داوږو سره موازي وي.



* د فاتحې او بلې سورې د ویلو په وخت کې لاسونه په ټټر (سینه) ایږدي.



* په رکوع کې دومره ټیټېږي چې لاسونه یې ګونډې ته رسي.







* په سجده کې ورنونه او متې (بازو) په څنګونو (بغل) نښلوي او څنګل (آرنج) او لیچې (ساعد) په ځمکه نښلوي او پښې ځملوي چې د پښو ګوتې یې سره نښلي.



* د تشهد او درود (قعدې) د لوستلو په وخت کې دواړه پښې ښۍ خواته ایستل کېږي او داسې باید کښېني چې ښی ورون په کیڼ (چپ) ورون او ښی لینګی (ساق) په کیڼ (چپ) لینګي راشي.
* ښځه باید په هر لمانځه کې ورو تلاوت وکړي. د ښځو په جماعت کې که ښځه امامه وي نو باید دښځو په مینځ کې ودرېږي نه له هغوی څخه وړاندې.

## د لمانځه فرضونه، واجبات او سنتونه

پوښتنه: هیله کوم پلار جانه! ماته د لمانځه فرضونه، واجبات او سنتونه هم وو ایه؟
ځواب: زه به ستا د دغو پوښتنو په اړه هم تا ته بشپړ مالومات درکړم.

### د لمانځه فرضونه دادي:

تکبیرة الاحرام (دنیت کولو وروسته الله اکبر ویل)، قیام، د قرآن قرائت (یوه سورة یا حد اقل درې آیتونه)، رکوع، سجده، له سجدې وروسته د قعدې ناسته او د لمانځه پای ته رسول په یو اختیاري عمل باندې.

### دلمانځه واجبات دادي:

۱. د فاتحې سورة ویل په دوؤ اولو فرض لمونځونو کې او په نورو ټولو رکعتونو کې چې فرض نه وي.





۲. د یوه سورة یا دریو آیتونو لوستل، وروسته له فاتحې سورې څخه، د فرض لمانځه په دوؤ لومړیو رکعاتو کې او د غیر فرض لمونځونو په ټولو رکعاتو کې.
۳. د ترتیب رعایت په هر رکعت کې یعنې لومړی قرائت، رکوع وروسته بیا سجده.
۴.وروسته له رکوع څخه د څو شېبو لپاره تم کېدل (قومه).
۵. د دوؤ سجدو تر مینځ د لنډو شېبو لپاره تم او کرار کېناستل (جلسه).
۶. د دریو یا څلورو رکعتي لمونځونه په دویم رکعت کې ناسته.
۷. په وروستۍ قعده کې د تشهد لوستل.
۸. په آرامۍ او اطمینان په لمانځه درېدل او د لمانځه ټول ارکان په پام کې نیول.
۹. په سلام ورکولو د لمانځه پای ته رسول.
۱۰. د وتر لمانځه په دریم رکعت کې د قنوت دعا لوستل.
۱۱.د عید د لمانځه تکبیرونه.

* د سهار د فرض، د ماسپښین د فرض دوه اول رکعات، د ماښام فرض، دعید ، د جمعې، دتراویح او د وتر لمونځونه په لوړ غږ ویل، نور پاتې لمونځونه په آرامه اداء کول.
* کله چې مقتدي په امام پسې اقتدا کوي نو قرائت دې نه لوني.

## د لمانځه سنتونه په لاندې ډول دي:

* د تکبیرة الاحرام په وخت کې غوږونه تر لاسونو پورته کول
* د قیام په وخت کې د ګوتو یوځای کول او د سجدې په وخت کې باید ګوتې نه ډېرې لرې او نه هم سره نښتې وي
* د قیام په حالت کې د نارینه وؤ لاسونه سر په سر دنام لاندې او د ښځینه وؤ لاسونه د ټټر (سینې) په سر
* د هر لمانځه په اول رکعت کې د ثنا دعا لوستل
* د هر لمانځه په اول رکعت کې د ثنا له دعا څخه وروسته د «اعوذ باالله من الشیطن الرجیم» ویل
* وروسته له هغو څخه د «بسم الله الرحمن الرحیم» ویل
* د فاتحه سورة وروسته د امین ویل
* د امام له خوا د «سمع الله لمن حمده» د ویلو وروسته د مقتدي له خوا د «ربنا و لک الحمد» ویل
* د امام له خوا «الله اکبر» او «سمع الله لمن حمده» ویل
* د څلور ګوتو په اندازه د دوؤ پښو تر منځ د فاصلې رعایت
* د سجدې او رکوع په وخت کې د «الله اکبر» ویل
* په رکوع کې درې ځلې د «سبحان ربی العظیم» ویل
* په سجده کې درې ځلې د «سبحان ربی الاعلی» ویل
* تر رکوع وروسته قیام او درېدل
*په سجده کې د دې ترتیب (لومړی ګونډې، لاسونه او وروسته مخ) رعایت او د سجدې په پای کې د بر عکس ترتیب رعایت
* د ښځو لپاره د لاسونو تر منځ د سرا ښودل او د نارینه وو لپاره د اوږو سره د لاسونو موازي ایښودل





* د نارینه وو خیټه (شکم) له ګونډې، څنګل له څنګه او مړوند (ساعد) له ځمکې لرې ساتل، خو د ښځو برعکس باید چسپېدلې وي
* د دوؤ سجدو ترمنځ کیناستل
* د نارینه د ناستې په حالت کې ښی پښه ولاړه، کینه (چپه) څملولې او ښی پښه داسې ولاړه وي چې ټولې ګوتې یې په ځمکه نښتې وي
* ښځې پښې ښی خواته باسي او په کینې (چپ) لنګر کېني
* د فرض په دوؤ وروستیو رکعتونو کې د فاتحې سورة لوستل
* په وروستۍ قعده کې وروسته له تشهد څخه د درود لوستل
* له درود څخه وروسته د دعا غوښتل
* ښی او کینې (چپې) خواته سراړول
* مقتدي د تم شي تر څو امام سلام وګرځوي
* د سهار په لمانځه کې له دویم رکعت څخه د اول رکعت اوږدول

## د لمانځه مفسدات او مکروهات

پوښتنه: پلار جانه ! کوم شیان لمونځ فاسد یا مکروه کوي، او په کومو ځایونو کې د لمانځه لوستل مکروه دي؟

ځواب: دا ډېر ښه سوال دی او زه به درته په ترتیب ځواب درکړم.

که د لمانځه له شرایطو څخه کوم یو په پام کې ونه نیول شي نو لمونځ باطل کېږي.

لکه: اودس، غسل، کالي او نور... په لاندې مواردو کې هم لمونځ فاسد کېږي او لمونځ اداکوونکی باید د دویم ځل لپاره لمونځ وکړي.

د لمانځه د ترسره کولو په وخت کې خبرې، چیغې، ګیلې، قرآن د مخ نه لوستل، پرته له امام څخه چاته ویل چې لمونځ غلط اداء کوي، په

لاره تلل یا قدم وهل، ښې یا کیڼې خواته کتل او په لمانځه کې غلطي چې د آیت مفهوم واړوي.

## د لمانځه مکروهات په لاندې ډول دي:

د لمانځه په وخت کې د کالیو یا نورو شیانو سره ساعت تېري، د لمانځه له ځایه د څه شي لرې کول، د لاس ګوتو ته فشار ورکول ترڅو غږېږي پورته شي (د لاس ټک اېستل)، لاسونه په څنګ کې اېښودل، په سترګو ښې او کیڼ (چپ) لوري ته کتل، پلتری وهل یا چهار زانو کېناستل، اوږده کالي اغوستل چې په ځمکه ولګي، د زی روح موجودات په سر سجده، د انځوریزو (مصور) کالیو سره لمونځ او په لمانځه کې د تسبیح اړول.

اما په دې اړوند چې لمونځ په کومو ځایونو کې مکروه دی باید ووایم: په عمومي لارو، دڅارویو په شپول، د څارویو د وژلو په ځای، حمام، تشناب او د کعبې د خونې په غولي، او په زور نیول شوې ځمکه کې لمونځ مکروه دی. په عمومي لاره کې چې ننبه نه وي اېښول شوې، لمونځ کول صحیح نه دي.

# د لمانځه ډولونه

پوښتنه: پلار جانه! لمونځ په څو ډوله دی؟

ځواب: لمونځونه په څلورو ډولونو وېشل کېږي:

۱- فرض
۲- واجب
۳- سنت





۴- مستحب

فرض لمونځونه په دوه ډوله دي: فرض عین او فرض کفایي.

فرض عین هغو لمونځونو ته ویل کېږي چې باید هر څوک یې اداء کړي او ترې پاتې نشي.

د بیلګې په توګه: د ورځې پنځه ګوني لمونځونه (۲رکعته سهار، ۴رکعته ماسپښین، ۴رکعته مازدیګر، ۳رکعته ماښام او ۴ رکعته ماسختن) او د جمعې ۲ رکعته لمونځ.

فرض کفایي هغو لمونځونو ته ویل کېږي که له یوې ټولنې څخه یې یو کس اداء کړي بیا نور غړي اړ نه دي چې هغه ترسره کړي. خو کله چې یو یې هم اداء نکړي بیا ټول ګناهکار کېږي. لکه د جنازې لمونځ.

واجب لمونځونه لکه د وتر، کوچني اختر او لوی اختر لمونځونه چې اداء کول یې اړین دي.

سنت لمونځونه عبارت دي له: دوه رکعته د سهار د لمانځه نه مخکې، څلور رکعته دماسپښین له فرض لمانځه نه مخکې او دوه رکعته وروسته له فرض لمانځه، دوه رکعته د ماښام د فرض لمانځه نه وروسته او دوه رکعته د ماسختن له فرض لمانځه څخه وروسته.

مستحب لمونځونه هم لکه نفل او تهجد لمونځ باید په یوازیتوب ترسره شي، یوازې د تراویح لمونځ لوستل په جماعت کې سنت دی.

## د سهوې او تلاوت سجده

پوښتنه: که په لمونځ کې کوم واجب پاتې شي، څه باید وکړو؟ آیا لمونځ له سره اداء کړو که د هغې د جبیره لپاره بله لار هم شته؟ او که د قرآن د تلاوت په وخت کې د سجدې آیت ته ورسېدو څه باید وکړو؟

ځواب: که کله څوک د لمانځه په وخت کې پوه شو چې واجب یې وروسته اداء کړی، یا یې نه دی اداء کړی او یا یې کوم عمل دوه ځلې تکرار کړی باید د سهوې سجده ترسره کړي. او هغه داسې چې وروسته له آخري تشهد څخه ښي او کیڼ (چپ) لوري ته سلام وګرځوي او بیا دوې سجدې اداء کړي او بیا د دویم ځل لپاره تشهد او درود ووایي او وروسته له هغې سلام وګرځوي.

خو کله چې امام سهوه او غلطي کړې وي نو مقتدیان دې له هغه څخه پیروي وکړي. په داسې حالت کې امام یوازې یوې خوا ته سلام ګرځوي او بیا ټول جماعت یو ځای د سهوې سجده اداء کوي.

د تلاوت د سجدې په اړه باید ووایم: د قرائت په وخت کې چې کله څوک هغه ۱۴ آیتونه ولولي چې سجده پرې لازمېږي، هم خپله او هم څوک یې چې اورې د لمانځه په وخت کې سجده وکړي، کله چې په لمانځه کې نه وي، یا په هماغه وخت یا وروسته له تلاوت څخه سجده وکړي. د تلاوت سجده یوازې یوه سجده ده.

## د جماعت لمونځ





پوښتنه: پلار جانه! تر اوسه دې چې څه وویل له هغې مننه کوم او هیله لرم چې د جماعت لمانځه، دهغې فضیلت، څرنګوالي او د امامت د شرایطو په اړه هم راته څه ووایې؟

ځواب: په حنفي مذهب کې په جماعت لوستل مؤکد سنت دی. د جماعت د لمانځه د ارزښت او فضیلت په اړه د نبی (ص) همدا حدیث کافي دی چې وایي: «په جماعت د لمونځ لوستل ۲۷ مرتبې له یوازیتوب څخه ښه دی.»

(دا حدیث له مسلم او بخاري څخه روایت شوی دی.)

په لمانځه کې باید داسې کس امام شي چې د حضرت محمد (ص) په سنتونو تر ټولو ښه پوه وي، که کله ټول یوشان ول، بیا دې داسې څوک امام شي چې ښه قرائت ولري او کنه متقي او مشر دې امامت وکړي.

که په لمانځه کې یوازې یو کس مقتدي و، نو هغه دې د امام په ښي خوا کې ودرېږي، خو کله چې مقتدیان زیات وي د امام په شا کې دې صف جوړ کړي. د صف برابرول او په منظمه توګه درېدل د جماعت لمونځ بشپړوي. په دې اړوند نبی(ص) فرمایلی دي:

«خپل صفونه برابر کړئ، ځکه نظم او ترتیب لمونځ بشپړوي»

(دا حدیث له مسلم او بخاري څخه روایت شوی دی.)

له امام څخه وروسته نارینه، ماشومان او له هغوی څخه وروسته دې ښځې ودرېږي. کله چې څوک د جماعت په منځ کې لمانځه ته ورګډ شي، نو لومړی دې تکبیر ووایي او وروسته دې اقتدا وکړي، که چېرې کوم رکعت ترې پاتې وي، د امام د سلام ګرځولو څخه دې یې وروسته اداء کړي. که امام د سهوې یا تلاوت سجده اداء کړه، نو دی یې هم باید اداء کړي.

## د ښځو لمونځ په جماعت کې

له ابن عمر (رض) څخه روایت شوی دی چې پیغمبر (ص) فرمایلي دي:

«اذا استأذنکم نساؤکم باللیل الی المسجد فأذنو الهن»

ژباړه: که له تاسو څخه ستاسې میرمنو په شپه کې جومات ته د تګ لپاره اجازه اخلي نو ور یې کړئ.

له ابوهریره (رض) څخه روایت شوی دی چې پیغمبر(ص) فرمایلي دي:

«لاتمنعوا اماءالله مساجد الله ولیخرجن تفلات»

ژباړه: د خدای (ج) بنده ګان د خدای (ج) له جوماتونو څخه مه منعه کوئ خو هغوی باید بې بویه ولاړې شي. «یعنې پرته له دې چې خوشبوهي ووهي.»

هر هغه شی چې د محرماتو په ډله کې راځي او د شهوت سبب کېږي د خوشبويي حکم لري. لکه: د کالیو ښایست، سینګار (آرایش) او هغه ګاڼې (زیورات) چې نورو ته ښکاره شي.

د جماعت لمونځ د ښځو لپاره جایز دی، که ښځه هغوی ته جمعه ورکړي نو تحریمي مکروه دی، په هر ه ښه امامت او د اکثریتو جماعت سم دی. خو که نرینه هغوی ته جماعت ورکوي نو ممانعت یکې نشته خود ښځو تګ جومات ته د فتنې له ډاره مکروه دی. په کور کې د ښځې لمونځ په هغه نر پسې چې ورته محرم نه وي او له هغه نرینه پرته بل محرم نرینه په کور کې نه وي، مکروه دی.

له دغو خبرو داسې ښکاري چې د ښځې تګ جومات ته ممانعت نه لري، دا باید وویل شي چې د ښځې لمونځ له جومات څخه په کور کې





ښه دی خو د دې لپاره چې جومات د خدای (ج) کور دی او هر مسلمان په هغې ځای کې د ایمان احساس کوي، نو ځکه باید نرینه خپلو میرمنو ته جومات ته د تګ لپاره اجازه ورکړي، خو که چېرته د فتنې ډار وي نو باید هغه له جومات څخه منعه کړي. د مسلمانانو مور حضرت بي بي عایشې (رض) فرمایلي دي:

«لوأن رسول الله (ج) رآی من النساء ما رأینالمنعهن من المسجد کما منعت بنو اسرائیل نساء ها»

ژباړه: که پیغمر (ص) له ښځو هغه څه لیدلای چې موږ یې وینو، نو پرته له شکه هغوی یې جومات ته له تګه منع کولې لکه څنګه چې بني اسرائیلو خپلې ښځې منعه کړې وې.

روایت شوی دی چې د حمید ساعدي مور حضرت محمد (ص) ته ورغله او لاندې خبرې اترې یې تر منځ وشوې.

ای د خدای (ج) پیغمبره! زه ستاسره لمونځ کول خوښوم، نو پیغمبر (ص) ورته وفرمایل: ستا لمونځ ستا تر نورو خونو په خپله خونه کې ښه دی او ستا لمونځ تر هغه لمونځ چې په کورني جومات کې یې ترسره کړې په کور کې ښه دی او ستا لمونځ تر هغه لمونځ چې په جامع جومات کې یې ترسره کړې په کورني جومات کې ښه دی.

## قضایي لمونځ

پوښتنه: پلار جانه! که څوک د کومې ستونزې له کبله ونه توانید لمونځ وکړي یا هیر یې شي، باید څه وکړي؟

ځواب: که څوک د ځینو ستونزو له کبله لمونځ نشي کولای، قضایي دې یې اداء کړي. یعنی لمونځ دې په بل وخت کې وکړي. مګر په نیت کې دې قضایي لمونځ ذکر کړي. قضایي لمونځ باید د راتلونکي فرض لمانځه نه مخکې اداء شي، خو کله چې د راتلونکي فرض لمونځ وخت کم وي، اول فرض لمونځ اداء کېږي او وروسته بیا قضایي لمونځ ترسره کېږي.
کله چې ډیر لمونځونه قضا شوي وي، ښه ده چې هر یو په ترتیب اداء شي، خو کله چې له شپږو لمونځونو څخه ډیر وي تقدم او تأخر پکې پروا نه لري.
د یادونې وړده چې د فرض لمونځ قضایي فرض او د واجب لمونځ قضایي واجب ده. مؤکد سنتونه او نوافل قضایي نه لري. یوازې د سهار د لمانځه د سنتو قضایي اداء کېږي. ځکه چې په ډېرو احادیثو کې پرې تأکید شوی دی او د قضایي وخت یې د لمر ناستې نه وړاندې دی.

## د ناروغی لمونځ

پوښتنه: پلار جانه! که څوک ناروغه وي او ونه توانېږي په سمه بڼه لمونځ ترسره کړي باید څه وکړي؟





ځواب: اسلام ډیر ساده او آسانه دین دی او په هر حالت کې ځانګړې حکم لري. که څوک نشي کولای په دریدا لمونځ وکړي، بیا په ناسته دې یې وکړي او که په ناسته کې ستونزه ولري، نو بیا دې یې په اشاره اداء کړي. یعنی که څوک په ناسته لمونځ نشي کولای نو بیا دې یې په پراته حالت د اشارې په وسیله لمونځ وکړي، هغه داسې چې خپلې پښې دې قبلې لورې ته وغزوي یا دې په څنګ د قبلې لورې ته پرېوځي. خو کله چې څوک په الوتکه یا بېړۍ کې وي حتی که بیمار هم نه وي کولای شي په ناسته لمونځ اداء کړي.

## د مسافري لمونځ

پوښتنه: پلار جانه! مسافر څنګه لمونځ وکړي او په کومو حالوتو کې کولای شي څلور رکعتي لمونځونه په دوه رکعتو کې ولوني؟
ځواب: مسافر هغه کس دی چې له خپل استوګنځي (سکونت) څخه درې ورځې په پښو واټن طی کړي. که مسافر په الوتکه یا ګاډي کې هم سفر کړی وي، نو که د هغې ځای واټن تر استوګنځي پورې درې ورځې پیاده لار وي، بیا هم مسافر ګڼل کېږي یا دغه واټن ۴۸ مایله وي.[8]

[8] حنفي مذهب فقها وؤ دمسافرت واټن درې ورځې او شپې یا ۱۵ فرسخ تعیین کړی، چې ۴۵ مایله کېږي. خو ځینې نوربیا ۴۸ مایله وایي. د الفقة علی المذاهب الاربعة کتاب خاوند وایي دغه واټن۵۷ مایله دی.

كله چې مسافر له خپل استوګنځي څخه لرې کېږي، په هغه واجب دی، ترڅو څلور رکعتي لمونځونه لنډ اداء کړي، خو په دوه او درې رکعتي لمونځونو کې لنډيز نشته.

مسافر تر هغه وخته د مسافرت لمونځ ادا کولی شي ترڅو په هغه ښار کې د ۱۵ ورځو يا د هغو څخه کم د پاتې کېدو تصميم ولري. خو کله يې چې دا پرېکړه نه وي کړې، مګر ناڅاپه تر کلونو هم پاتې شي لنډ لمونځ اداکولی شي.

دسنت لمونځونو په لوستلو کې مسافر اختيار لري، خو يوازې بايد دسهار سنت اداء کړي او د وتر لمونځ هم بايد ولوني.

هر کله چې مسافر په ساکن پسې اقتدا کوي، نو بايد لمونځ بشپړ ولوني، خو کله چې ساکن په مسافر پسې اقتدا کوي، مسافر يا امام بايد نوروته ووايي چې زه مسافر يم او تاسې خپل لمونځونه بشپړ کړئ. مقتديان دې د امام تر سلام ګرځولو وروسته بيا ودرېږي او دوه رکعته نور لمونځ دې اداء کړي. کله چې لمونځ په مسافرت کې قضا شي، نو په کور کې هغه لنډ لوستل کېږي، خو کله چې په کور کې لمونځ قضا کېږي، نو هغه په مسافرت کې بشپړ لوستل کېږي.

## د جمعې لمونځ

پوښتنه: پلار جانه! تاسې هره جمعه ما د ښار جامع جومات ته بيايې او هلته ګڼ شمېر خلک دلمانځه د اداء کولو لپاره راځي. نو ځکه غواړم چې د جمعې لمانځه په ځانګړتياو پوه شم؟





ځواب: زويه، د جمعې لمونځ په هغه ښارونو کې لوستل کېږي چې په هغې کې آسانتيا، آرامي او ژوند کول مساعد وي. د جمعې لمانځه د ښه ترسره کولو لپاره لاندې شرايط اړين دي.

۱. داسې ښار وي چې په هغې کې جامع جومات موجود وي.
۲. د ماسپښين د لمانځه وخت رارسېدلی وي.
۳. د جمعې لمونځ بايد په جماعت اداء شي.
۴. أذان بايد د ټولو لپاره وي، ترڅو ټول خلک وتوانېږي په آرامۍ سره پکې ګډون وکړي.
۵. خطبه ولوستل شي.

د جمعې په لمانځه کې غسل کول، پاک کالي اغوستل، د عطر يا خوشبو کارول او مسواک کول سنت دي. د جمعې لمونځ په نرينه چې ساکن، عاقل او آزاد وي فرض دی.

څوک چې د دغه شرايطو بر عکس يعنې: ښځه، مسافر، ليونی، ناجوړ او زنداني وي د جمعې لمونځ پرې فرض نه دی. که له دې ډلې څخه څوک لمانځه ته حاضر شي، د جمعې په لمانځه کې نه شمېرل کېږي، د جمعې د لمانځه د اذان په اورېدلو سره بايد هر څوک خرڅلاو پرېږدي او لمانځه ته ولاړ شي. د جمعې د خطبې په پيل سره خبرې او لمونځ ممنوع کېږي.

تر لومړي اذان وروسته څلور رکعته سنت لوستل کېږي او بيا دوؤ خطبو ته غوږ نيول کېږي چې امام يې وايي او د دوؤ خطبو په منځ کې څو لحظې کيني. تر دويمې خطبې وروسته اقامت لوستل کېږي او بيا په لوړ غږ او جماعت سره دوه رکعته فرض لمونځ اداء کېږي. لمونځ کوونکي وروسته له هغې لومړی څلور رکعته او بيا دوه رکعته سنت

لمونځ اداء کوي. په پای کې امام دعا لوني او ټول يې اوري، بيا ټول وګړي په خپلو کارونو پسې ځي.

# د وتر لمونځ

پوښتنه: پلار جانه ! که امکان لري وتر او قنوت لمونځ هم را وښيه؟
ځواب: د وتر لمونځ هغه درې رکعته واجب لمونځ دی چې په هر رکعت کې سورة فاتحه له يو بل سورة سره لوستل کېږي، په دريم رکعت کې وروسته له قرائت څخه لاسونه د تکبير په ويلو سره غوږونو ته پورته کېږي او بيا بيرته له نامه سره تړل کېږي او په آرامه توګه د قنوت دعا لوستل کېږي.
د قنوت دعا
« اَللهُمّ انّا نَسْتَعينُکَ وَ نَسْتَغْفِرُکَ وَ نُؤْمِنُ بِکَ وَ نَتَوَکّلُ عَلَيْکَ وَ نُثْنی عَلَيْکَ الخَيْرَ، وَ نَشْکُرُکَ وَ لاَ نَکْفُرُکَ وَ نَخْلَعُ وَ نَتْرُکُ مَنْ يَفْجُرُکَ، اَللهُمّ اِيّاکَ نَعْبُدُ وَ لَکَ نُصَلیّ وَ نَسْجُدُ وَ اِلَيْکَ نَسْعی وَ نَحْفِدُ وَ نَرْجُوا رَحْمَتَکَ وَ نَخْشی عَذَابَکَ اِنّ عَذَابَکَ بِالْکُفّارِ مُلْحَقٌ»
ژباړه: خدايه له تا مدد او ښښنه غواړم، په تا ايمان لرم او په تا توکل کړم او تا په خير يادوم، خدايه ستا شکر وباسم او له تا سر غړونه نه کوم او څوک چې له تا سر غړونه کوي، هغه پرېږدم. خدايه ستا عبادت کوم او يوازې ستا لپاره لمونځ اداء کوم ستا سره اخلاص لرم، ستا د رحم غوښتونکی يم او له عذابه دې وېرېږم، رښتيا ده چې ستا عذاب د کافرانو لپاره دی.
د قنوت دعا تر لوستلو وروسته تکبير لوستل کېږي بيا رکوع وي. د وتر د لمانځه وخت د ماسختن له فرض او سنت لمونځ څخه وروسته پيل کېږي او د سهار تر لمانځه پورې دی. دا لمونځ بايد په يوازيتوب





اداء شي خو په روژه کې د وتر لمونځ له تراويح وروسته په جماعت اداء کېږي.

# د اختر لمونځ

پوښتنه: پلار جانه ! د کوچني او لوی اختر لمونځ څنګه اداء کېږي او کوم شرايط لري؟
ځواب: دغه دواړه لمونځونه ښه دي چې د ښار څخه بهر په لويو او شنو ډاګونو کې ترسره شي. وخت يې د لمر د وړانګو له غوړېدو څخه وروسته دی او شرايط يې لکه د لمانځه ځای، لمونځ کوونکي او نور ټول موارد د جمعې د لمانځه په شان دي.
دغه لمونځونه په جماعت ترسره کېږي او امام بايد په لوړ غږ قرائت وکړي. هغه وروسته له تکبيرة الاحرام او د ثناء له دعا څخه درې تکبيره ترسره کوي. د دغو تکبيرونو په ترڅ کې امام او مقتديان خپل لاسونه تر غوږونو پورته کوي او بېرته يې ځوړندوي، د دريم تکبير په ترسره کولو باندې خپل لاسونه د نامه په سر تړي. امام له «اعوذ بالله» او «بسم الله» څخه وروسته فاتحه سورة او د قرآن يو بل سورة لوني او مقتدي ورته غوږ نيسي، بيا مقتدي لکه د نورو لمونځونو په رکوع او سجده کې د امام څخه پيروي کوي. د اختر د لمانځه په دويم رکعت کې، لومړی امام فاتحه سورة د يو بل سورة سره لوني، بيا درې ځلې تکبير ترسره کوي. په دغه حالت کې د لومړي رکعت په شان مقتديان خپل لاسونه تر غوږونو پورته کوي او بيا لاسونه بېرته ځوړندوي د څلورم تکبير په ويلو سره ټول رکوع ته ځي او وروسته لکه نور لمونځونه، لمونځ پای ته رسوي.

د دواړو اخترونو په لمونځونو کې د خطبې اورېدل سنت دي او امام په خطبه کې د روژې یا قرباني احکام او د تشریق تکبیرونه بیانوي. د اختر لمونځ قضائي نه لري، خو د عذر له مخې د کوچني اختر لمونځ تر دویمې ورځې او د لوی اختر لمونځ تر دریمې ورځې ترسره کېدلای شي.

په دغو لمونځونو کې اذان او اقامه نشته. د کوچني اختر د لمانځه څخه مخکې ډوډۍ خوړل، غسل کول، مسواک او عطر ویل مستحب دي، مګر په لوی اختر کې ښه ده چې ډوډۍ وروسته له لمانځه وخوړل شي او ټول لمونځ کوونکي باید لاندې الفاظ په لوړ غږ ولوني.

الله اکبر، الله اکبر

لااله الاالله، الله اکبر

الله اکبر و لله الحمد

دغو الفاظو ته د تشریق تکبیرونه وایي. دغه تکبیرونه د لوی اختر د لمانځه وروسته د ټولو لمونځونو په پای کې د څلورمې ورځې تر مازدیګر پورې چې په جماعت ترسره کېږي د امام او مقتدي له خوا په لوړ غږ لوستل کېږي. د دغه تکبیراتو د پیل ورځ عرفه ده.

له دې لمونځونو پرته موږ باید په نورو لمونځونو لکه تراویح او جنازه (میت) هم پوه شو.

# د تراویح لمونځ

پوښتنه: پلار جانه! هیله کوم د تراویح لمونځ هم راته زده کړه؟





ځواب: دغه لمونځ د نرینه او ښځینه و لپاره سنت دی. دغه لمونځ د روژې په میاشت کې د ماسختن د فرض او سنت له لمونځونو وروسته شل رکعته په دوه رکعتي بڼه په جماعت ترسره کېږي. وروسته له څلورو رکعاتو څخه یعنې وروسته له دوؤ دوه رکعتي لمونځونو څخه د تراویح تسبیح لوستل کېږي. چې په لاندې ډول ده:

«سُبْحَانَ ذِی الْمُلْک وَ الْمَلَکُوْت*سُبْحَانَ ذِی الْعِزَّةِ وَالْعَظْمَةِ وَ الْهَیْبَةِ وَالْقُدْرَةِ و الْجَلَالِ وَالْجَمالِ وَ الْکِبْرِیَآءِ وَ الْجَبَرُوْت*سُبْحَانَ الْمَلِک الْحَیِّ الّذِی لَایَنَامُ وَلاَ یَمُوْتُ سُبُّوْحٌ قُدُّوْسٌ رَبُّنَا وَ رَبُّ الْمَلئِکَةِ وَالرُّوْحِ اَللهُمَّ اَجِرْنَا مِنَالنّارِ یَا مُجِیْرُ یَامُجِیْرُ یَامُجِیْرُ»

ژباړه: پاکي هغه ذات لره ده چې د ځمکې او آسمانونو واکمن دی، پاکي هغه ذات لره ده چې د عظمت، قدرت او لوی والي څښتن دی، پاک دی هغه څښتن چې تل ژوندی وي او هیڅکله نه مري، هغه چې زموږ او د پلوشو (پرښتو) رب دی او هیڅکله روح کېږي نه. هغه ډېر پاک او مقدس دی. یا خدایه! موږ د دوزخ له اوره وساته، موږ وساته، موږ وساته، موږ وساته.

په تراویح کې د قرآن ختم د یو ځل لپاره سنت دی، وروسته له تراویح څخه وتر په جماعت ترسره کېږي.

# د جنازې لمونځ

د جنازې (میت) لمونځ فرض کفایه دی، یعنې کله چې د یوې مسلمانې ډلې یو مسلمان هغه لمونځ ترسره کړي، نو په نورو غړو باندې فرض نه دی چې ترسره یې کړي.

د جنازې لمونځ په دې بڼه ترسره کېږي چې امام د مړي د سینې پر وړاندې ودرېږي او په څلورو تکبیرونو د جنازې لمونځ په جماعت ترسره کوي. یعنې په لوړ غږ تکبیرة الاحرام لوني او لاسونه تر غوږونو پورته کوي او بېرته یې سره تړي او وروسته د ثناء دعا په لاندې بڼه لوني:

«سُبْحَانَکَ اَللّٰهمّ وَ بِحَمْدِکَ وَ تَبارَکَ اسْمُکَ وَ تَعالی جَدُّکَ وَجَلّ ثَناؤکَ وَلاالهَ غَیْرُک.»

ژباړه: خدایه! پاکي ستا لره ده، او موږ ستا ستاینه کوؤ، ستا نوم با برکته او ستا شأن عظیم دی، ستاینه او حمد ستا د لوی والي لپاره دي، هیڅ معبود پرته له تا نشته.

پرته له دې چې لاسونه غوږونو ته پورته شي د «الله اکبر» د ویلو څخه وروسته لاندې دعا لوستل کېږي:

«اَللّٰهُمّ صَلِّ وَ سَلِّمْ وَبارِکْ وَ ارْحَمْ عَلی مُحَمّد وَ عَلی آلِ مُحَمّد کَما صَلَّیْتَ وَ سَلَّمْتَ وَ بارَکْتَ وَ رَحِمْتَ عَلی اِبْراهیمَ وَ عَلی آلِ اِبْراهیمَ اِنّکَ حَمیدٌ مَجید»

د دریم ځل لپاره د «الله اکبر» په ویلو مړي ته دعا لوستل کېږي.

- که مړی بالغ ښځینه یا نرینه وي، نو لاندې دعا لوستل کېږي.

«اَللّٰهُمّ اغْفِرْ لِحَیِّنَا وَ مَیِّتِنَا وَ شاهِدِنَا وَغَائِبِنَا وَ صَغیرِنَا وَ کَبیرِنَا وَ ذَکَرِنَا وَ اُنْثَانَا ، اَللّٰهُمّ مَنْ اَحْیَیْتَهُ مِنّا فَأَحْیِهِ عَلَ الْاِسْلامِ وَ مَنْ تَوَفَّیْتَهُ مِنّا فَتَوَفَّهُ عَلَی الْأیمانِ»





ژباړه: خدایه! زما مړي، ژوندي، حاضر، غایب، لوی، کوچني، ښځه او نر وبښه، له موږ څخه دې چې هر څوک ژوندي ساتلي هغوی په اسلام ټینګ وساته او له موږ څخه دې چې هر څوک مړه کړي هغوی ریښتیني په ایمان مړه کړه.

- که مړی نا بالغه هلک وي لاندې دعا ولوئ:

«اَللّٰهُمّ اجْعَلْهُ لَنا فُرُطاً وَ اجْعَلْهُ لَنا اَجْراً وَذُخْراً وَ اجْعَلْهُ لَنَا شَافِعاً وَ مُشَفَّعاً»

ژباړه: خدایه دا هلک یا نجلۍ زموږ له خوا څخه د یوه وړاندیز په بڼه ومنه او هغه موږ ته اجر او زیرمه وګڼه، هغه زموږ لپاره شفیع او شفاعت کوونکی وګرځوه.

- که مړی نابالغه نجلۍ وي دعا په لاندې بڼه ولوئ:

«اَللّٰهُمّ اجْعَلْهَا لَنَا فُرُطاً وَ اجْعَلْهَا لَنَا اَجْراً وَ ذُخْراً وَ اجْعَلْهَا لَنا شافِعَةً وَ مُشَفَّعَةً»

ژباړه: خدایه دا هلک یا نجلۍ زموږ له خوا څخه د یوه وړاندیز په بڼه ومنه او هغه موږ ته اجر او زیرمه وګڼه، هغه زموږ لپاره شفیع او شفاعت کوونکی/کوونکې وګرځوه.

د څلورم تکبیر سره ټول جماعت سلام ګرځوي او د مړي د خیر لپاره دعا کوي.

## د نوافلو لمونځونه

پوښتنه: پلاره ! آیا پرته له دې نور لمونځونه شته چې تاسو ماته نه وي ویلي؟

ځواب: هو زویه ! د نوافلو لمونځونه هم شته چې په ځانګړو شرایطو او مناسبتونو کې لوستل کېږي. لکه کسوف، خسوف، استخاره، حاجت، تسبیح، تهجد، اشراق، ضحی، توبه، استسقا، خوف، تحیة المسجد او نور لمونځونه چې زه به یې په لنډه بڼه تا ته تشریح کړم.

د کسوف او خسوف لمونځ: د کسوف (د لمر د تندر نیولو) په وخت کې امام دوه رکعته لمونځ ترسره کوي او په هغه کې سورة حمد له یوې بلې اوږدې سورې سره په لوړ غږ لوني او بیا دعا کوي.

د خسوف (د سپوږمۍ د تندر نیولو) په وخت کې هم همدا کار ترسره کېږي، د خسوف لمونځ په جلا توګه لوستل کېږي یعنی په جماعت نه ترسره کېږي.

د استسقا لمونځ: کله چې باران و نه ورېږي او وچکالي زیاته شي نو وګړي له ښار څخه بهر په جلا توګه دوه رکعته لمونځ ترسره کوي او دعا کوي.

د خوف لمونځ: کله چې د جګړې په ډګر کې مبارزه شدت ته ورسېږي، امام او سرتیري په دوؤ ډلو وېشل کېږي، یوه ډله لمونځ ترسره کوي او بله ډله د هغوی امنیت نیسي، کله چې لومړۍ ډلې دوه رکعته لمونځ بشپړ کړ، مورچل ته ځي او دویمه ډله په لمانځه کې ګډون کوي.

کله چې امام سلام وګرځاوه لومړۍ ډله خپل پاتې دوه رکعته په جلا توګه ترسره کوي او دویمه ډله د هغوی د بشپړېدو وروسته بېرته راګرځي او خپل لمونځونه بشپړوي. په دې حالت کې باید خپل دفاعي حالت وساتي.





د حاجت لمونځ: کله چې کوم مسلمان ته کومه ستونزه پېښه شي، دوه رکعته نفل لمونځ دې ولوني او خپله غوښتنه دې خدای (ج) ته وړاندې کړي.[9]

د استخارې لمونځ: کله چې یو مسلمان غواړي د خیر کار وکړي او په هغې کې متردد او دوه زړی وي، نو سنت دی چې دوه رکعته نفل لمونځ دې د استخاره په نیت ترسره کړي. وروسته له لمانځه څخه دې دعا وکړي[10] او خپله ستونزه دې وړاندې کړي. وروسته چې هر څه ښه ورته ښکاره شول هغه دې ترسره کړي، په هغې کې به هرومرو دخدای (ج) رضا وي.

د توبې لمونځ: کله چې څوک کومه ګناه کوي، وروسته بیا پښېمانه کېږي، د توبې اظهار او د بیانولو د پرېکړې لپاره دې دوه رکعته لمونځ ولوني، هیله ده چې خدای به یې وبښي.

د تسبیح لمونځ: دغه نفل لمونځ دی او د هغې د فضیلت په اړه یو حدیث هم راغلی. دغه لمونځ حضرت پیامبر (ص) خپل کاکا عباس (ع) ته ورښکاره کولو او ورته یې وویل: «ښه به وي چې دغه لمونځ په

---

[9] د حاجت دعا: «لاَ اِلهَ الاّ اللهُ الْحَلیمُ الْکَرِیمُ، سُبْحَانَ اللهِ رَبّ الْعَرْشِ الْعَظیم، اَلْحَمْدُ للهِ رَبّ الْعالَمینَ، اَسْئَلُکَ مُوجِباتِ رَحْمَتِکَ وَ عَزائِمَ مَغْفِرَتِکَ وَالْعِصْمَةَ مِنْ کُلِ ذَنْبٍ وَ الْغَنیمَةَ مِنْ کُلّ بِرّ وَ السّلاَمَةَ مِنْ کُلّ اِثْمٍ. لاَ تَدَعْ لِی ذَنْباً اِلاّ غَفَرْتَهُ و لاَ هَمّاً اِلاّ فَرّجْتَهُ وَلاَ حَاجَةً هِیَ لَکَ رِضًا اِلاَ قَضَیْتَهَا یَا اَرْحَمَ الرّحمینَ» (ترمذي، ابن ماجه)

[10] «اَللّهُمّ اِنّي أَسْتَخیرُکَ بِعِلْمِکَ وَ اَسْتَقْدِرُکَ بِقُدْرَتِکَ وَ اَسْئَلُکَ مِنْ فَضْلِکَ الْعَظیم، فَاِنکَ تَقْدِرُ وَ لاَ اَقْدِرُ وَ تَعْلَمُ وَ لا اَعْلَمُ وَ اَنْتَ عَلاّمُ الْغُیُوبِ.اَللّهُمّ اِنْ کُنْتَ تُعْلَمُ اَنّ هَذَا الاْمْرَ ! خَیْرٌلِیَ فِی دِینی وَ مَعَاشی وَ عاقِبَةِ اَمْری فَاقْدُرْهُ لی وَیَسّرْهُ لی ثُمّ بارِکْ لی فیهِ وَ اِنْ کُنْتَ تَعلَمُ اِنّ هَذَا الاْمْرَ شَرٌلِی فی دِینِی وَ مَعَاشَی وَ عَاقِبَةِ اَمْرِی فَاصْرِفْهُ عَنّی وَ اقْدُرْلی الْخَیْرّ حَیْثُ کَانَ ثُمّ اَرْضِی بِهِ.»

هره ورځ، یا هره اونۍ، یا هره میاشت، یا هر کال یا حد اقل په عمر کې یو ځل ترسره شي.»

د دغه لمانځه د ترسره کولو طریقه په دې ښه ده. د څلورو رکعاتو تسبیح نفل نیت دې وشي او د ثنا له دعا څخه وروسته ۱۵ ځله تسبیح وویل شي، د سورة د لوستلو څخه وروسته ۱۰ ځلې، په رکوع کې ۱۰ ځلې، د تسبیح او تمجید څخه وروسته ۱۰ ځله، په لومړی سجده کې ۱۰ ځلې او په دویمه سجده کې ۱۰ ځلې تسبیح لوستل کېږي په دې ترتیب سره په هر رکعت کې ۷۵ ځلې تسبیح لوستل کېږي چې په څلورو رکعاتو کې ۳۰۰ ځلې کېږي. په رکوع او سجده کې وروسته له «سُبْحَانَ رَبِّیَ الْعَظِیم» او «سُبْحَانَ رَبِّی الْاَعْلٰی» تسبیح ویل کېږي. د تسبیح دعا په لاندې توګه ده:

«سُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَکْبَر»

د دغه لمانځه په ترسره کولو خدای (ج) پخوانۍ ګناه ګانې ببښي او ښه، کامیابه او د سعادت ژوند انسان ته ور په برخه کوي.

د تهجد لمونځ: د تهجد د کلمې معنی ویښتوب او ویده توب دی، تهجد هغه لمونځ دی چې یو کس د شپې له خوا ببده شي او په نیمه شپه کې پاڅېږي او لمونځ ولوني. د دغه لمانځه د غوره والي په اړه پیغمبر (ص) فرمایلي دي:

«اَفْضَلُ الصَّلاةِ بَعْدَ الْفَرِیضَةِ صَلاةُ اللَّیْلِ»

ژباړه: ښه لمونځ د فرض لمانځه څخه وروسته د شپې لمونځ دی.

(دغه حدیث مسلم روایت کړی دی)

د دغه لمانځه د ترسره کولو وخت دشپې له نیمایي څخه تر صادق سهار پورې دی. د دې لمانځه لږ رکعات دوه او ډېر یې اته دي.





د اشراق او ضحی لمونځونه: د اشراق لمونځ د لمر خاته او د لومړی سوروالي د ورکېدو څخه وروسته څلور رکعته لوستل کېږي. د ضحی لمونځ وخت ۹ یا ۱۰ بجې دي، یعنې هغه وخت چې لمر د آسمان څلورمې برخې (ربع) ته ورسي او څلور یا اته رکعته لوستل کېږي. د دغه دوؤ لمونځونو د ښه والي په اړه ډېر احادیث راغلي علماو دغه دواړه مستحب ګڼلي.

د تحیة المسجد لمونځ: کله چې مسلمان جومات ته ننوځي ښه به دا وي چې دوه رکعته سنت لمونځ د تحیة المسجد په نیت ولوني.

پیغمبر (ص) فرمایلي:

«هر کله چې له تاسو څخه څوک جومات ته ننوځي مخکې له ناستې دې دوه رکعته لمونځ ولوني»

(دا حدیث مسلم او بخاري روایت کړی)

د لمونځونو د بحث په پای کې باید وویل شي چې نور نفل لمونځونه لکه د ماښام د لمانځه څخه وروسته او د اوامین یا سفر لمونځ او داسې نور... هم شته.

# د روژې په اړه لنډ مالومات

روژه د اسلام دریمه ستنه (رکن) ده چې د دې میاشتې د اهمیت په اړه د اسلام ستر پیغمبر حضرت محمد (ص) فرمایلي دي:

د میاشتو ښه او غوره د روژې میاشت او د ورځ غوره او ښه د جمعې ورځ ده.

په بل ځای کې هغه (ص) فرمایلي دي:

که بنده ګان د هغه څه په اړه چې د روژې په میاشت کې دي پوهیدلی، نو پرته له شکه هغوی به ویل چې کاشکې د روژې میاشت تر یوه کاله وای.

او د هغه (ص) ارشاد دی چې:

کله چې د روژې میاشت را رسېږي، د جنت دروازې خلاصېږي او د دوزخ دروازې تړل کېږي او په دې میاشت کې شیطان هم په ځنځیرونو تړل کېږي.

د دې لپاره چې دغه میاشت د صبر او برکت میاشت ده، نو ځکه د اسلام ډېرې لویې پېښې او اوښتونونه هم په همدې میاشت کې شوي دي، چې کولای شو د مکې فتحه، د بدر دلوی جنګ فتحه او داسې نور لکه د تبوک غزوه، دیمن د خلکو مسلمانېدل د عزی ولات دبتانو نړول، په پرتګال کې د ازالقه فتحه، د عین جالوت فتحه او داندلس فتحه پکې یاده کړو.

د روژې په میاشت کې روژه نیول به دویم لیږدیز کال کې د اوسنۍ قبلې تر ټاکلو وروسته فرض شول او حضرت محمد (ص) د روژې نه





میاشتې یې ونیولې او د روژې په لسمه میاشت کې هغه (ص) له دې نړۍ ستر ګې پټې کړې.

روژه د خوړو، څښلو، جماع او هر هغه شي څخه چې د روژې په ضد وي، ډډه کولو او اجتناب ته ویل کېږي چې وخت یې د صادق سهار د سباوون (طلوع) څخه پیل او د لمر ترلویدو (غروب) پورې دی.

د روژې نیولو شرایط:

هر هغه څوک چې لاندې درې شرایط ولري په هغه روژه فرض ده.

۱- اسلام، ۲- عقل او ۳- بلوغ

له پورتنیو څرګندونو ښکاري چې په کافر، لیوني او ماشوم روژه فرض نه ده.

هغه شرایط چې د هغې پر بنسټ روژه په یوه مسلمان فرض کېږي لاندې دي:

۱- انسان جوړ او روغ وي یعنې ناروغه نه وي.

۲- په سفر کې نه وي.

۳- ښځه د حیض (میاشتني عادت) په حالت کې نه وي.

۴- ښځه د نفاس (تر زیږون وروسته د وینې تویدنې) په حالت کې نه وي.

د پورتنیو عذرونو په وخت کې روژه فرض نه ده، خو مسافر او ناروغ کولای شي روژه ونیسي، مګر هغه ښځه چې د حیض یا نفاس په حالت کې وي په هغې روژه نیول حرام دي.

په لاندو دریو شرطونو روژه سمه ده.

۱- د روژې نیت لرل.

۲- له هر هغه څه پاکوالی چې د روژې ضد دي.

٣- د روژې ساتنه له هر هغه څه چې د روژې د ماتېدو او نه منلو سبب کېږي.

## د روژې ډولونه:

١- فرض روژه: لکه د روژې مبارکه میاشت او د هغې قرض، نذر او کفاره روژه چې د نذر روژې ته واجب روژه هم ویلی شو.
٢- سنت روژه: لکه د محرم د میاشتې د نهمې او لسمې ورځ.
٣-مستحب او نفلي روژه:
الف: د هرې میاشتې د ١٣، ١۴ او ١۵ ورځې روژه نیول.
ب: د عرفې په ورځ روژه نیول.
ج: د دوشنبې او پنجشنبې د ورځو روژه نیول.
د: د شوال د میاشتې شپږ ورځې روژه نیول پرله پسې یا بېلابېل.
هـ: که چیرې څوک یې توان ولري نو دا به ښه وي چې یوه ورځ روژه ونیسي او یوه ورځ روژه ماته کړي.

د نفل د روژې حکم: کله چې یو کس په نفلي روژه پیل کوي، په هغه فرض ده چې روژه بشپړه کړي، که چېرې هغه روژه ماته کړه، نو باید قضایي یې حتماً ونیسی.
۴- حرامه روژه: د کوچني او لوی اختر د ورځو او له هغې څخه درې ورځې وروسته روژه نیول چې هغه ته د تشریق ورځې هم ویل کېږي.
۵- مکروه روژه: په جلا توګه د جمعې د ورځې روژه نیول، د نوي کال په لومړۍ ورځ روژه نیول او یا هم د روژې له میاشتې څخه یوه یا څو ورځې مخکې روژه نیول.





د روژې د میاشتې په لیدو سره په ټولو مسلمانانو په دې میاشت کې روژه نیول فرض کېږي.

## د روژې د ماتېدو سببونه:

د روژې د ماتېدو سببونه په دوه ډوله دي:
الف: هغه د ماتېدو سببونه چې کفاره او قضا، دواړو ته اړتیا لري.
ب: هغه د ماتېدو سببونه چې یوازې قضا ته اړتیا لري.
لومړی: هغه ماتوونکي شیزونه چې کفاره او قضا دواړو ته اړتیا لري:
هغه مهال چې یو کس پرته له شرعي عذر څخه ډوډۍ وخوري، څه شی وڅکي او یا د خپل شهوت لپاره د خپلې میرمنې سره جنسي اړیکه ونیسي.
په پورتنیو حالاتوکې د لاندو شرایط پربنسټ دواړه قضا او کفاره باید ورکړل شي.
١- کله چې روژه د روژې په مبارکه میاشت کې وي نه قضایي او نور...
٢- معقول عذر موجود نه وي لکه سفر، بیماري او نور...
٣- د روژې په ماتولو کې خپلواک وي، یعنې څوک یې د روژې ماتولو ته اړ نه باسي.
۴- روژه قصداً ماته کړي نه په سهوه، خطا او یا هیره.
دویم: هغه د روژې د ماتېدو سببونه چې یوازې قضا ته اړتیا لري هغه په لاندې ډول دي:
١- کوم کس چې داسې شی وخوري چې هغه نه ډوډۍ وي او نه د ډوډۍ په حکم کې راشي.
٢- هغه شی چې ډوډۍ نه ده، مګرد ډوډۍ په حکم کې راځي، لکه درمل او نور...

۳- د شهوت د ناستې لپاره په ناقص توګه جنسي اړیکه..

کله چې څوک روژه له هیره باسي او روژه ماتوي، هر کله یې چې روژه یاد ته راشي، روژه یې سمه ده، هغه قضا او کفارې دواړو ته اړتیا نه لري. په روژه کې د مسواکو او رنجو کارول هم جایز دي.

# د روژې ځینې نورې ځانګړنې

* په روژه ماتي کې بیړه او په پشلمي کې لټې یا تأخیر ثواب لري.
* د امکان په صورت کې روژه باید په خرما، اوبو یا شیدو ماته شي.
* د روژه ماتي په وخت کې خدای (ج) د خپل بنده هره مشروع دعا مني.
* د روژې د مبارکې میاشتې په وخت کې عبادات ډېرې لوړې مرتبې ته رسېږي، نو ځکه باید تر ډېره ګټه واخلو. لکه نفل، تهجد، د قرآن پاک تلاوت، ذکر، صدقات، زکات ورکول، معروف (ښیګڼې) ته امر او منکر (بدیو) ته نهې (ډډه) او داسې نور...
* د روژې د میاشتې په وروستیو لسو ورځو کې اعتکاف ته کېناستل سنت دي، نارینه په جومات کې او ښځینه د خپل کور په جومات یا په تشه خونه کې اعتکاف ته کښېني. د اعتکاف وخت د روژې د شلمې ورځې د لمر له لوېدو (غروب) څخه پیل کېږي او د آخرې روژې د لمر تر لوېدو (غروب) پای ته رسېږي.





* د روژې د میاشتې په وروستیو لسو ورځو کې د قدر د شپې لټون چې د ۸۳ کالو له عبادت څخه ډېر لوړ مقام لري، یو با ارزښت او مهم کار دی. موږ باید دغه آسانتیا له لاسه ورنکړو.
* روژه لرونکی کس باید خپل ټول اقوال، اعمال له بدو، زشتو او نه خوښېدونکو کړنو څخه وساتي، که نه نو د هغو روژه هېڅ ثواب او اجر نه لري.

د هغو خلکو لپاره چې د روژې خوړل ورته جایز دي، په لاندې ډول دي:

۱- مسافر: په دې شرط چې روژه نیول ورته زیان ورسوي.

۲- ناروغ: په دې شرط چې د مسلمان او صادق طبیب (ډاکټر) لخوا ورته د خوړلو توصیه شوې وي. دلته د مسلمان او صادق ډاکټر قید د احتیاط لپاره راوړل شوی دی.

۳- ښځه د میاشتني عادت (حیض) په حالت کې.

۴- ښځه له زیږون څخه وروسته د وینې توېېدنې (نفاس) په حالت کې.

۵- بلاربه (حامله داره) مور د اړتیا په صورت کې، ځکه چې روژه نیول یې کېدای شي ماشوم (جنین) ته زیان ورسوي.

۶- شیدې ورکونکې مور که چېرې اشد ضرورت وي، ځکه چې روژه نیول یې کېدای شي ماشوم ته زیان ورسوي.

۷- هغه کس چې د روژه نیولو په سبب کمزوره او ضعیفه شوی وي او د ډېرې شدیدې ناروغۍ او یا مرګ ګواښ ورته پیښ کړي.

پورتني ذکر شوي کسان د خپل عذر د خلاصېدو وروسته باید خوړل شوې روژه بېرته په قضایي بڼه ونیسي.

۸- شيخ فاني: هغه کس چې د بيا روغېدلو او قوي توب هېله پکې نه وي، هغه کولای شي روژه وخوري خو فديه بايد ورکړي.

يادداښت: د روژې د مبارکې مياشتې په پای کې د صدقه فطر يا سر سايي ورکول واجبي امر دی.

د سرسايي ټاکل شوې کچه ۱۹۰۰ ګرامه غنم چې ۱ چارک کېږي او يا هم د هغې معادل کوم بل شی، لکه خرما، نغدې پيسې او داسې نور...

فديه هم همدا اسې محاسبه کېږي.





# د زکات په اړه لنډ مالومات

زکات د اسلام څلورمه ستنه (رکن) ده او د اسلام له مهمو ارکانو څخه بلل کېږي. د دغه رکن فرضيت په لاندې دلايلو ثابتېږي:

خدای (ج) په خپل لوی کتاب کې فرمايلي دي: «لمونځ ترسره کړئ او زکات ورکړئ.»

حضرت رسول الله (ص) فرمايلي دي: زکات په هيڅ مال کې خلط شوی نه دی، مګر تر څو چې هغه يې له منځه نه دی وړی. يعنې د زکات پر ورکولو پکې ډېر تأکيد شوی دی.

هغه (ص) په بل ځای کې فرمايلي دي: څوک چې د خپل مال زکات نه ورکوي، د قيامت په ورځ به لوی ماران د ده تر ځان تاوؤ وي او دی به په خريلي سر چيچي او ورته به وايي زه ستا خزانه يم.

د زکات ورکولو ګټې:

* د زکات په ورکولو د انسان زړه له حرص او بخل څخه پاکېږي او انسان رحم کوونکی کېږي.
* د زکات په ورکول کې ټولنيز انډول برابرېږي او د ټولنيز تکافل لپاره يوه ښه لاره ده.
* د زکات په ورکولو کولای شو د فساد او هغه لارې بندې کړو چې د لوږې له لارې ټولنې ته خلاصې شوې دي.
* د زکات په ورکولو کولای شو د دښمنانو د مداخلې او نفوذ مخه ونيسو او خپله خپلواکي او استقلاليت وساتو.

د زکات ورکولو شرايط:

۱- اسلام

۲- عقل
۳- بلوغ
۴- نصاب (د مال کچه او معیار)
۵- خپلواکي
۶- له پور څخه خلاصون
۷- له اصلي او طبیعي اړتیاوؤ څخه خلاصون

## په ژوؤ کې زکات

د ژوؤ په دریو ډولونو کې زکات ورکول فرض دي:
۱- اوښ: د اوښانو په زکات کې ټیټه کچه (نصاب) پنځه اوښه دي:
د ۵ نه تر ۹ اوښانو باندې ............ یو وری
د ۱۰ نه تر ۱۴ اوښانو باندې ............ دوه وري
د ۱۵ نه تر ۱۹ اوښانو باندې ............ دری وري
د ۲۰ نه تر ۲۴ اوښانو باندې ............ څلور وري
په ۲۵ اوښانو باندې ............ یو کلن اوښ چې نوې یې په دوه کلنۍ پښه ایښې وي
له دې څخه پورته فقهي کتابونو ته مراجعه وکړئ.

۲- وري: د وریو په زکات کې ټیټه کچه (نصاب) څلوېښت وري دي.
د ۴۰ نه تر ۱۲۰ وریو باندې ............ یو وری
د ۱۲۱ نه تر ۱۹۹ وریو باندې ............ دوه وري
د ۲۰۰ نه تر ۳۹۹ وریو باندې ............ دری وري
په ۴۰۰ وریو باندې ............ څلور وري





له دې څخه پورته په هرو سلو وریو کې یو وری زیاتیږي.

۳- غواګانې: د غواګانو په زکات کې ټیټه کچه (نصاب) دیرش غواګانې دي.
په ۳۰ غواګانو کې یو یو کلن خوسی
په ۴۰ غواګانو کې یو دوه کلن خوسی
په ۶۰ غواګانو کې دوه یو کلن خوسیان
په ۷۰ غواګانو کې یو یوکلن خوسی او یو دوه کلن خوسی
په ۸۰ غواګانو کې دوه دوه کلن خوسیان
په ۹۰ غواګانو کې دری یو کلن خوسیان
په ۱۰۰ غواګانو کې دوه یوکلن او یو دوه کلن خوسی
د نورو زیاتو غواګانو د فرضیت کچه په هر و لسو غواګانو کې یو کلن خوسی په دوه کلن اوړي یعنې په هرو دېرشو غواګانو کې یو کلن خوسی او په هرو څلویښتو غواګانو کې یو دوه کلن خوسی زیاتیږي.

## په سرو زرو (طلا)، سپینو زرو (نقره) او نغدو پیسو کې زکات

په سرو زرو کې د زکات ټیټه کچه ۲۰ مثقاله ده چې هر کله یو کس شل مثقاله سره زر پیدا کړل وروسته له یوه کال څخه باید نیم مثقال سره زر په زکات کې ورکړي. چې د نن ورځې د حساب پر بنسټ یعنې په ګرام په لاندې ډول دی:
یو مثقال = ۲۵.۴ ګرامه

$$4.25gr \times 20 = 85gr$$

نو ۲۰ مثقاله سره زر ۸۵ ګرامه کېږي، په یوه کال کې د ۸۵ ګرامو سروزرو باید نیم مثقال چې ۲،۱۲۵ ګرامه سره زر کېږي، په زکات کې ورکړل شي. دغه کچه باید د ورځني نرخ په بنسټ حساب شي.

په سپینو زرو کې د زکات ټیټه کچه ۲۰۰ درهمه ده، چې د دغه کچې د پوره کېدو څخه یو کال وروسته باید ۵ درهمه زکات ورکړل شي.

یو درهم = ۲،۹۷۵ ګرامه

$$200\times 2.975gr = 595gr$$

نو د سپینو زرو ټیټه کچه په زکات کې ۵۹۵ ګرامه ده، او وروسته له یو کال څخه باید موږ د هغې پنځه درهمه چې ۱۴،۸۷۵ ګرامه سپین زر کېږي، د ورځني نرخ په بنسټ زکات ورکړو.

د نورو ټولو سوداګریزو توکو زکات هم لومړی باید نغدو پیسو ته واړول شي او وروسته بیا د سرو زرو او یا سپین زرو په بنسټ د هغې زکات ورکړل شي.

## چا ته باید زکات ورکړل شي:

۱- فقراء (غریبان)، دروېزه
۲- مساکین
۳- پور لرونکي
۴- د خدای (ج) د لارې مجاهدین
۵- مسافرین
۶- هغه غلامان چې د ځان د خوشې کېدو (خپلواکي) په بدله کې یې د خپل بادار سره د پیسو وعده کړې وي.
۷- کارکوونکو ته د هغوی د کړنو په بدل کې (دا برخه په دولت پورې اړه لري).





له خدای (ج) څخه هیله لرم چې د دغه رکن په صادقانه او مخلصانه توګه په ځای کولو کې زموږ سره مرسته وکړي او خپله خوښي او رضایت زموږ د حال سره ګډ کړي.

# د حج په اړه لنډ مالومات

حج د اسلام پنځمه ستنه (رکن) ده، چې د ځانګړي ځای، په ځانګړي وخت کې د ځانګړو شرایطو پربنسټ زیارت کولو ته حج ویل کېږي. کله چې یو کس بشپړ مالي امکانات ولري په هغه د بیت الله الحرام زیارت کول فرض دي. د حج د اداء کولو وخت د شوال، ذی القعدې او د ذی الحجې میاشتې وروستۍ لس ورځې دي.

## د حج د مناسکو د اداء کولو طریقه:

هر هغه څوک چې د بیت الله د زیارت نیت ولري نو په پیل کې باید خپل د اړتیا وړ توکي برابر کړي. لکه: د اړتیا وړ پیسې، د احرام کالي، د پیسو بکسه، د احرام څپلکې، دوه یا درې جوړه کالي او نور...

کله چې د مکې مکرمې په لورې حرکت وکړي، نو باید په لاندې ترتیب احرام وتړي.

١- ځان پریمینځي (غسل وکړي)
٢- د احرام کالي واغوندي
٣- دوه رکعته لمونځ ترسره کړي
٤- وروسته له هغې په دې ترتیب نیت وکړي:

«الهم اني ارید العمرة فیسره لي وتقبله مني»

کله چې نیت وشو، وروسته بیا باید تلبیه ویل پیل کړي، تلبیه په لاندې ډول ده:





«لبیک اللهم لبیک، لبیک لا شریک لک لبیک، ان الحمد و النعمةلک لا شریک لک»

د تلبیې ویلو ته په هر حالت کې باید ادامه ورکړل شي، کله چې مکې معظمې ته ورسېدئ د حرم سیمې ته د باب سلام د دروازې له لارې د ننه شئ. کله مو چې سترګې په کعبه ولګېدې د تهلیل د تکبیر په ویلو د حرم سیمې ته ننوځئ. کله چې د حرم سیمې ته د ننه شوئ باید لاندې کارونه ترسره کړئ:

١- طواف: د لومړي طواف په پیل کولو تلبیه ویل باید بند کړای شي. دغه طواف ته د قدوم طواف ویل کېږي چې د حجر الاسود څخه پیل کېږي او وروسته له اوه دورو بېرته په حجرالاسود پای ته رسېږي. د امکان په صورت کې په هر دور کې باید حجر الاسود ته نږدې شئ او لاس پرې راکش (مسحه) کړئ. که چېرته امکان یې نه وؤ حجر الاسود ته مخامخ ودرېږئ او «بسم الله و الله اکبر» ولونئ.

په لومړیو دریو دورونو کې باید د احرام ټکری په لاندې ډول وي:

د ټکري یوه څنډه د کیڼې اوږې لاندې او بله خوا یې د ښي تخرګ څخه تېره شوې وي او بېرته په کیڼه اوږه واچول شي. باید داسې جوړ شي چې ښۍ اوږه لوڅه پاتې شي. په دغو دریو دورو کې که امکان ولري نو چابک او د پهلوانانو په څېر باید رفتار وشي او په پاتو څلورو نورو دورونو کې په عادي حالت رفتار ته ادامه ورکړئ. د طواف په وخت کې د مسنونه دعاؤ، اذکارو، تکبیرونو، تحمید او تهلیل ویل جایز دي.

٢- د ابراهیم په مقام یا د مسجد الحرام په بل هر ځای کې چې امکان لري دوه رکعته لمونځ ترسره کړئ.

۳- په دريم ګام بايد د زمزم اوبه وڅښئ، په هر نيت چې اوبه څښل کېږي خداى (ج) هغه مني.

۴- د حجر الاسود رکن ته مخامخ د صفا غونډۍ خواته ولاړ شئ، د صفا پر غونډۍ دې په دعا کې ډېر اصرار او ټينګښت وشي، وروسته به د مروې خواته روان شئ. د مروې د لارې په اوږدو کې بايد د دوؤ شنو نښو تر منځ چابک وګرځئ، مګر چې نورو ته اذيت ونکړي. کله چې مروې ته ورسېدئ، د مروې په غونډۍ کعبې ته مخامخ ودرېږئ او په دعا کې دې دلته هم بايد ډېر اصرار او ټينګښت وشي. په همدې ترتيب اوه دوره ترسره کېږي، چې له صفا پيل او په مروه پاى ته رسېږي.

د صفا او مروې تر منځ د سعى د ترسره کولو وروسته خپل سر وخريئ او يا هم خپل ويښتان لنډ کړئ او ځان له احرامه وباسئ.

## د فرضي حج پيل:

په همدې ځاى کې عمره حج پاى ته رسېږي او وروسته بيا د ذى الحجې تر اتمې هلته بايد تم شي. د ذى الحجې د اتمې وروسته د فرضي حج مراسم پيل کېږي او هغه په دې بڼه دي.

## د ذى الحجې د اتمې ورځې کړنلاره:

د ذى الحجې په اتمه د فجر (سهار) د لمانځه وروسته حاجي په مکه کې په خپله هغه خونه کې چې اوسي ځان بايد پريمينځي يعنې غسل وکړي او دوه رکعته لمونځ دې ترسره کړي. احرام دې واغوندي او د فرضي حج نيت دې په لاندې ډول وکړي.





«اللهم اني اريد الحج فيسره لي و تقبله مني»

وروسته له هغې دې د تلبيې په ويلو پيل وکړي او د مينى لورې ته دې روان شي. په مينى کې دې خپله کېږدۍ (خيمه) معلومه کړي او په هغه ځاى کې دې پنځه وخته لمونځ ترسره کړي. د ماسپښين (ظهر)، مازديګر (عصر)، ماښام (مغرب)، ماسختن او د ذى الحجې د نهمې ورځې د سهار (فجر) لمونځونه دې ادا کړي.

## د ذى الحجې د نهمې ورځې کړنلاره

د سهار (فجر) لمونځ د وخته ترسره کېږي او وروسته بايد حاجي د عرفاتو په لور روان شي، عرفاتو ته په پښو يا ګاډي (موټر) کې تلل دواړه صحي دي.

کله چې حاجي عرفاتو ته ورسېدو د ماسپښين (ظهر) او مازديګر (عصر) لمونځونه دې دواړه يو ځاى د وخته د نميره په جومات کې ترسره کړي. وروسته بيا د لمر تر لوېدو (غروب) پورې دې د عرفاتو په مناسب ځاى کې ودرېږي او په عبادت او دعا دې ځان لګيا کړي. د لمر د لوېدو (غروب) وروسته دې د مزدلفې خواته روان شي او د لارې په اوږدو کې دې د ماښام (مغرب) لمونځ نه ترسره کوي. د ماښام او ماسختن لمونځ دې يو ځاى په مزدلفه کې وکړي او هڅه دې وکړي چې ځان جومات ته ورسوي دا به ښه وي چې مشعرالحرام جومات ته ورسي او شپه هم هلته تېره کړي. په همدې شپه يا د هغې صبا ته بايد ۷۰ شګې ټولې کړي تر څو جمره په هغې ووهي.

## د ذی الحجې د لسمې ورځې کړنلاره

د ذی الحجې د لسمې ورځې د سهار (فجر) لمونځ لږ د وخته يعنې د شپې په تياره کې ترسره کېږي او وروسته بيا په مزدلفه کې حاجي بايد مکې معظمې ته مخامخ ودرېږي او د لمر تر ختو (سباوون) پورې بايد هلته دعا وکړي، د لمر له ختو وروسته دې د مينی په لور روان شي. کله چې مينی ته ورسېدو لاندې کارونه دې بايد په لاندې ترتيب ترسره کړي:

۱- د عقبه جمرې ويشتل په اوه بېلابېلو شګو، د هر شګې په ويشتلو سره بايد الله اکبر وويل شي. کله چې لومړی شګه وار شوه تلبيه ويل بايد بند شي. د وسطي او اولې جمرې وهل د عيد په ورځو کې جايز او روا نه دي.

۲- د جمرې تر وهلو وروسته بايد خپل مال قرباني کړي، خو د جمرې تر وهلو وروسته حاجي صاحب بايد د ثور د غره لمنې ته ولاړ شي، چېرته چې د قرباني ځای دی. په هغه ځای کې دې يو ژوی راونيسي او هغه دې حلال کړي.

۳- تر قرباني وروسته حاجي بايد خپل سر وخرييي او يا خپل ويښتان کم کړي او خپل ځان له احرام څخه بهر کړي، يعنې د احرام کالي له ځانه لرې کړي او خپل عادي کالي واغوندي.

تر دغو کړنو وروسته د فرضي طواف وار رارسېږي. کله چې حاجي صاحب سر وخريېلو د اختر تر دريمې ورځې کولای شي طواف وکړي خو ښه به دا وي چې د سر د خرېيلو وروسته له مينی څخه د مکې په لور روان شي او د قدوم طواف په شان دې فرضي طواف هم وکړي.





هغه چا چې په قدوم طواف کې په دريو اولو دورو کې چابک چابک او د پهلوانانو په څېر ګرځېدلي او د صفا او مروې تر منځ يې سعی ترسره کړې، په فرضي طواف کې ورته اړتيا نشته خو که هلته يې نه وي ترسره کړې او س يې بايد حتمي ترسره کړي.

د طواف له ترسره کولو وروسته حاجي بايد بېرته د مينی لورې ته روان شي. او د اختر په دويمه او دربيمه ورځ د زوال نه وروسته دې درې واړه جمرې په لاندې ترتيب ووهي.

کله چې لومړی جمرې ته ورسېد په اوه بېلابېلو شګو دې د تکبير په ويلو جمره وولي، وروسته دې له هغه ځايه ځان لرې کړي او مکې معظمې خواته دې مخامخ ودرېږي او دعا دې وکړي. وروسته د دويمې جمرې يا ميانه جمرې وار رارسېږي، هغه دې هم په اوه شګو لکه لومړی جمره وولي او وروسته دې مکې معظمې خواته مخامخ ودرېږي او دعا دې وکړي. وروسته له دې دې وروستی جمرې خواته ولاړ شي او هغه دې هم په اوه شګو لکه مخکنيو جمرو وولي او له هغه ځايه دې ځان خلاص کړي. د آخري جمرې له وهلو وروسته دې نه تم کېږي او خپلې کېږدۍ (خيمې) ته دې ولاړ شي.

## د جمرې په وهلو کې د پام وړ ټکي:

۱- هغه څوک چې ضعيف وي او نشي کولای جمرې وولي نو ځان ته دې وکيل (استازی) يا مرستيال وټاکي. که نر يا ښځه وي، وکيل بايد د خپل ځان او د خپل دې مؤکل لخوا جمره وولي.

۲- د جمرو د هلو د تګ په وخت کې بايد ډېره پاملرنه وشي، بايد حاجي له ځانه سره څه ونلري. لکه ټکری، بيګ، چترى، او نور توکي. د يادولو وړ ده چې هلته بايد خپلو پيسو ته هم پام وکړي.

د اختر په دریمه ورځ هم په هماغه ترتیب باید جمرې وویشتل شي.
که حاجي صاحب وتوانېږي د دریمې ورځې د لمر له لوېدو څخه مخکې مکې معظمې ته ولاړ شي هیڅ ستونزه نه شته. که په هغه شپه راغله باید په مینی کې پاتې شي. او د اختر په څلورمه ورځ د لمر له لوېدو مخکې یا وروسته د جمرو له ویشتلو وروسته باید د مکې لورې ته روان شي.
کله چې حاجي مکې ته ورسېد ، په طاعت او عبادت باید لګیا شي تر څو خپل هېواد ته یې د راستنېدو وخت را ورسېږي، کله چې د راتګ وخت یې راورسېد ، نو کعبې ته دې ولاړ شي او د صدر یا وداع طواف دې ترسره کړي. له هغه ځایه دې ځان رخصت کړي او د جدې په لور دې روان شي.
دا ول د حج د ترسره کولو په اړه لنډ مالومات خو مهمه دا ده چې کله حاجي صاحب احرام و اغوست نو لاندې کارونه پرې حرامېږي:
۱- د ګنډل شوؤ کالیو اغوستل لکه خت، خولۍ او نور...
۲- د خوشبویي یا عطر کارول.
۳- د لاسونو او پښو د نوکانو اخیستل.
۴- د انسان د ځان د ویښتانو خرېیل، لنډول او یا شکول.
۵- د سر او د مخ پټول. دې ته باید د مزدلفې په شپه ډېره پاملرنه وشي.
۶- ښکار کول.
پورتني کارونه هغه دي چې باید حاجي یې د احرام په وخت کې ترسره نه کړي، که چېرې له هغو څخه یو کار ترسره شي نو حاجي به دې تېروتنې د ترسره کولو په جزا کې یو ژوی حلالوي.

## د دعا د منلو ځایونه:






۱- طواف
۲- د صفا او مروې تر منځ سعی (د صفا او مروې غونډۍ)
۳- په عرفاتو کې
۴- په مزدلفه کې
۵- د لومړۍ او دویمې جمرې تر ویشتلو وروسته
۶- په ملتزم یعنې د کعبې به لاندینۍ دروازه کې
۷- په حطیم کې یعنې د میزاب یا د رحمت د ناوې لاندې

## د عبادت او زیارت لپاره ځایونه:

۱- د پیغمبر (ص) روضه او په نبوي جومات کې لمونځ.
۲- د قبا په جومات کې دوه رکعته لمونځ چې د یوې عمرې ثواب لري.
خو نور ځایونه لکه: پنځه ګوني جوماتونه، ذوقبلتین جومات، د احد ډګر، د ثور او نورو غرونو لمنې او نور ځایونه د حج په مراسمو کې شامل نه دي. د حاجي تګ د غو ځایونه ته کوم ځانګړی حکم نه لري.
له خدای (ج) څخه غواړم چې د ټولو حاجیانو حج په خپل دربار کې ومني او په دې هیله چې بنده په خپلو ټولو دعاګانو کې ګډ کړي.



# د سهار او ماښام دعاګانې

## د بقرې سورت (۱-۵) آیتونو پورې:

الم (۱) ذَلِكَ الْكِتَابُ لاَ رَيْبَ فِيهِ هُدًى لِّلْمُتَّقِينَ (۲) الَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِالْغَيْبِ وَيُقِيمُونَ الصَّلاةَ وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ يُنفِقُونَ (۳) وَالَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِمَا أُنزِلَ إِلَيْكَ وَمَا أُنزِلَ مِن قَبْلِكَ وَبِالآخِرَةِ هُمْ يُوقِنُونَ (۴) أُوْلَـئِكَ عَلَى هُدًى مِّن رَّبِّهِمْ وَأُوْلَـئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ (۵)

ژباړه: آلــم * (د الله) کتاب دی هیڅ شک پکې نشته * لارښوونه ده د پرهیزګارانو لپاره * هغوی چې په غیبو ایمان راوړي، او لمونځونه ودروي، او ځینې له هغه مال څخه چې موږ ورکړی خیراتوي * او هغه کسان چې ایمان راوړي په هغه کتاب چې په تا نازل شوی دی او په هغو (کتابونو) ایمان راوړي چې له تا څخه مخکې نازل شوي دي او په آخرت هغوی باور لري * دوی د خپل رب له لوري په سمه لار دي او همدوی خلاصی موندونکي دي*

## دبقرې سورت (۲۵۵ – ۲۵۷) آیتونو پورې:

اللّهُ لاَ إِلَـهَ إِلاَّ هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ لاَ تَأْخُذُهُ سِنَةٌ وَلاَ نَوْمٌ لَّهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الأَرْضِ مَن ذَا الَّذِي يَشْفَعُ عِنْدَهُ إِلاَّ بِإِذْنِهِ يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ وَلاَ يُحِيطُونَ بِشَيْءٍ مِّنْ عِلْمِهِ إِلاَّ بِمَا شَاء وَسِعَ كُرْسِيُّهُ السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضَ وَلاَ يَؤُودُهُ حِفْظُهُمَا وَهُوَ الْعَلِيُّ الْعَظِيمُ (۲۵۵) لاَ إِكْرَاهَ فِي الدِّينِ قَد تَّبَيَّنَ الرُّشْدُ مِنَ الْغَيِّ فَمَنْ يَكْفُرْ بِالطَّاغُوتِ وَيُؤْمِن بِاللّهِ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقَىَ لاَ انفِصَامَ لَهَا وَاللّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ (۲۵۶) اللّهُ وَلِيُّ الَّذِينَ آمَنُواْ يُخْرِجُهُم مِّنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّوُرِ وَالَّذِينَ





كَفَرُواْ أَوْلِيَآؤُهُمُ الطَّاغُوتُ يُخْرِجُونَهُم مِّنَ النُّورِ إِلَى الظُّلُمَاتِ أُوْلَـئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ (۲۵۷)

ژباړه: الله (یو ذات) دی پرته له هغه هیڅوک (د بلنې) وړ نشته، تل ژوندی دی او (د ټولو کائناتو) سمبالوونکی دی، پرېښاني او خوب یې نه نیسي، د ده دي هغه څه چې په آسمانونو کې دي او هغه څه په ځمکه کې دي، څوک به د هغه (الله) له اجازې پرته د هغه په نزد سپارښت وکړي، په هغو ښه پوهېږي چې د خلکو په وړاندې دي او هغه چې وروسته له دوی دي، دوی د الله(ج) د علم په هیڅ شي احاطه نشي کولای مګر په هغه چې د الله (ج) اراده وي، کرسي د ده په آسمانونو کې او ځمکې پراخه ده او نه ستړی کوي هغه د دواړو ساتنه او هغه ډېر پورته او ډېر لوی دی* نشته زور په دین کې (د دین په منلو کې زور نشته) په تحقیق ښکاره شو هدایت له بې لارې څخه، نو څوک چې کفر وکړي (کافر شي) په طاغوت او ایمان راوړي په الله نو په تحقیق ویې نیوله کلکه کړۍ، نشته پرې کېدل د هغې لره (نه پرې کېږي) او الله اورېدونکی ښه پوه دی* الله پاک د مؤمنانو ملاتړی او کارساز دی هغوی له تیارو څخه د رڼا په لور باسي، او هغه کسان چې کافران دي ملاتړی د هغوی شیطانان وباسي، شیطانان، هغه له رڼا څخه د تیارو په لور، همدوی د اور څښتنان دي او تل به په اور کې وي.

## د بقرې سورت (۲۸۴- ۲۸۶) آیتونو پورې:

لِّلَّهِ ما فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الأَرْضِ وَإِن تُبْدُواْ مَا فِي أَنفُسِكُمْ أَوْ تُخْفُوهُ يُحَاسِبْكُم بِهِ اللّهُ فَيَغْفِرُ لِمَن يَشَاءُ وَيُعَذِّبُ مَن يَشَاءُ وَاللّهُ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ (۲۸۴) آمَنَ الرَّسُولُ بِمَا أُنزِلَ إِلَيْهِ مِن رَّبِّهِ وَالْمُؤْمِنُونَ كُلٌّ

آمَنَ بِاللّه وَمَلآئِكته وَكُتُبه وَرُسُله لاَ نُفَرّقُ بَيْنَ أَحَد مّن رُّسُله وَقَالُواْ سَمعْنَا وَأَطَعْنَا غُفْرَانَكَ رَبّنَا وَإِلَيْكَ الْمَصِيرُ (٢٨٥) لاَ يُكَلّفُ اللّهُ نَفْساً إِلاّ وُسْعَهَا لهَا مَا كَسَبَتْ وَعَلَيْهَا مَا اكْتَسَبَتْ رَبّنَا لاَ تُؤَاخذْنَا إِن نّسِينَا أَوْ أَخْطَأْنَا رَبّنَا وَلاَ تَحْملْ عَلَيْنَا إِصْراً كَمَا حَمَلْتَهُ عَلَى الّذينَ من قَبْلنَا رَبّنَا وَلاَ تُحَمّلْنَا مَا لاَ طَاقَةَ لَنَا بِهِ وَاعْفُ عَنّا وَاغْفرْ لَنَا وَارْحَمْنَا أَنتَ مَوْلاَنَا فَانصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِينَ (٢٨٦)

ژباړه: خاص د الله دي هغه څه چې په آسمانو کې دي او هغه څه چې په ځمکه کې دي، که تاسې د خپلو زړونو (پټ) شیان ښکاره کړئ او یا یې پټ کړئ، الله پاک به درسره پرې حساب وکړي الله پاک په هر شي توانا دی* ایمان راوړی رسول په هغه شي چې نازل شوی هغه ته له ربه د هغه، او مؤمنانو ایمان راوړی دی په هغه شي چې رسول ته نازل شوی ټولو ایمان راوړی په الله او په ملایکو د هغه او په کتابونو د هغه او په رسولانو د هغه (او وایي) موږ فرق نه کوو د الله په پیغمبرانو کې یو تر بله او وایي موږ (دالله حکم) واورېد او ومو مانه، ای زموږ ربه !ستا ښښنه غواړو او یوازې تا ته درتګ دی* الله (پاک) هیڅ ساکښ د هغه له توان څخه پورته نه مکلف کوي د هر ساکښ لپاره هغه څه دي چې کړي يې دي او پر ده دی (په غاړه يې دی د هغه شي مسؤلیت) چې ده کړي دي، ای زموږ ربه ! په هغه څه مو مه نیسه چې په هېره مو کړي او یا په غلطي، ای زموږ ربه ! پر موږ پېټی مه باروه لکه چې بار کړی تا له موږ څخه په وړاندې خلکو ، ای زموږ ربه ! پر موږ هغه بار مه ږده چې موږ یې توان نه لرو ، موږ ته عفوه وکړه، موږ ته ښښنه وکړه، پر موږ رحم وکړه، ته بادار یې زموږ، موږ ته پر کافرانو بری راکړه*





سورت فلق:

قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ (١) مِن شَرِّ مَا خَلَقَ (٢) وَمِن شَرِّ غَاسِقٍ إِذَا وَقَبَ (٣) وَمِن شَرِّ النَّفَّاثَاتِ فِي الْعُقَدِ (٤) وَمِن شَرِّ حَاسِدٍ إِذَا حَسَدَ (٥)

ژباړه: (ای محمد(ص)) ووایه زه پناه غواړم د سباوون په رب* له شر دهغه شي چې پیدا کړي یې دي* او د شپې د تورږمې له شر څخه چې هغه خوره شي* او له سر د پوکي کوونکو غوټو کې* او له شر د کینه کوونکي کله چې کینه وکړي*

سورت الناس:

قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ (١) مَلِكِ النَّاسِ (٢) إِلَهِ النَّاسِ (٣) مِن شَرِّ الْوَسْوَاسِ الْخَنَّاسِ (٤) الَّذِي يُوَسْوِسُ فِي صُدُورِ النَّاسِ (٥) مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ (٦)

ژباړه: (ای محمد (ص)) ووایه زه پناه غواړم د خلکو په رب* په واکمن د خلکو* په معبود د خلکو* له شر د وسوسه اچوونکي، پټېدونکي راپټېدونکي* هغه چې وسوسه اچوي د خلکو په زړونو کې* له پیریانو څخه وي که له انسانانو*

لومړی: عبدالله بن خبیب (رض) ویلې: په یوه تیاره شپه کې چې باران هم ورېده په رسول الله (ص) پسې ولاړو تر څو له موږ سره لمونځ وکړي موږ هغه(ص) ومونډ او ما ته یې وویل ووایه ما بیا څه و نه ویل بیا یې وویل: ووایه ! ما څه ونه ویل دریم ځل یې وویل:ووایه !ما وویل: ای د الله رسول(ص) څه ووایم؟ ویې فرمایل: قل هوالله احد او

معوذتين د سهار او ماښام په وخت درې ځله وو وايه ته به له هر راز ضرر څخه په امن کې شې.
دا حديث ابو داود، ترمذي، او نسايي روايت کړی. نسايي وايي دا حديث حسن او صحيح دی.

دويمه:
أَصْبَحْنَا وَأَصْبَحَ الْمُلْكُ لله وَالحَمْدُ لله لاَ شَرِيكَ لَهُ لاَ اِلَهَ اِلاّ هُوَ وَاِلَيْهِ النُّشُورُ. (درې ځلې)
د ماښام په وخت کې د (أَصْبَحْنَا...) پر ځای (أَمْسَيْنَا...) او د (اِلَيْهِ النُّشُورُ) پر ځای (اِلَيْهِ المَصِيْرُ...) ولوستل شي.
ژباړه: موږ او ټولو مخلوقاتو الله (ج) ته شپه سبا کړه او حمد او ستاينه الله لره ده نشته معبود پرته له هغه (الله) نه او هغه ته د ټولو پورته کيدل دي.
ابو هريره (رض) نه روايت دی چې ويلي يې دي: پيغمبر(ص) به په سهار کې (أَصْبَحْنَا...) او په ماښام کې (أَمْسَيْنَا...) دعاګانې درې ځلې لوستلې.
دا حديث ابن سني او بزار روايت کړی. بيهقي ويلي سند يې حسن دی.

دريمه:
أَصْبَحْنَا عَلَى فِطرَةِ الاِسْلاَمِ وَكَلِمَةِ الاِخْلاَصِ وَعَلَى دِينِ نَبِيِّنَا مُحَمَدٍ صَلَى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَمَ وَعَلَى مِلَةِ أَبِيْنَا اِبْرَاهِيْمَ حَنِيْفاً وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ. (درې ځلې)
په ماښام کې د (أَصْبَحْنَا) په ځای (أَمْسَيْنَا...) ويل کيږي.





ژباړه: موږ په اسلامي فطرت د اخلاص په کلمې د خپل نبي محمد(ص) په دين او زموږ د پلار ابراهيم چې حنيف دی او مشرک نه دی په ملت شپه سبا کړه.
ابی ابن کعب(رض) نه روايت دی وايي: کله به چې سبا شو نبي عليه السلام به را ته ويل داسې ووايئ: (أَصْبَحْنَا عَلَى فِطرَةِ الاِسْلاَمِ...) او کله به چې ماښام شو موږ ته يې دا راښودلې و چې ووايو:(أَمْسَيْنَا عَلَى فِطرَةِ الاِسْلاَمِ...)
دا حديث عبد الله بن احمد بن حنبل د زوائدو کتاب کې نقل کړی دی.

څلورمه:
اللهُمّ مَا أَصْبَحَ مِنْ نِعْمَةٍ اَوْ بِأَحَدٍ مِنْ خَلقِكَ فَمِنْكَ وَحْدَكَ لاَ شَرِيكَ لَكَ فَلَكَ الحَمْدُ وَلَكَ الشُكْرُ. (درې ځلې)
اللهُمّ اِنِّي أَصْبَحْتُ مِنْكَ فِي نِعْمَةٍ وَعَافِيَةٍ وَسِتْرٍ فَأَتِمّ عَلَيّ نِعْمَتَكَ وَعَافِيَتَكَ وَسِتْرَكَ فِي الدُّنْيا وَالآَخِرَةِ. (درې ځلې)
ژباړه: ای الله ما ستا په ستاينه، نعمت، سلامتيا، ستر او پرده کې شپه سبا کړه نو ته ای ربه! خپل نعمت، عافيت، ستر او پرده په دنيا او آخرت کې پر ما تمامه کړه.
له ابن عباس (رض) څخه روايت دی چې رسول الله (ص) فرمايلي دي: هر چا چې دا دعا درې ځلې سهار او درې ځلې ماښام ولوستله الله پاک پر هغه باندې خپل نعمت پوره کوي.
ابن سني دا روايت کړې.
پنځمه:
اللهُمّ مَا أَصْبَحَ بِي مِنْ نِعْمَةٍ اَوْ بِأَحَدٍ مِنْ خَلقِكَ فَمِنْكَ وَحْدَكَ لاَ شَرِيكَ لَكَ فَلَكَ الحَمْدُ وَلَكَ الشُكْرُ. (درې ځلې)

ژباړه: ای الله ! هر نعمت چې نن ما ته یا بل کوم مخلوق ته رسيدلی هغه ستا له لوري دی ته شريک او ساری نه لرې، نو ستاينه او شکر يوازې تا لره دی.

له عبدالله بن غنام څخه روايت دی چې رسول الله (ص) فرمايلي دي: چا چې سهار دا دعا دری ځلې ولوستله په حقيقت کې د هغې ورځې شکر يې ادا کړ او چا چې ماښام دا دعا دری ځلې ولوستله د هغې شپې شکر يې ادا کړ.

دا حديث ابو داود ، نسايي او ابن حبان په خپل صحيح کې روايت کړی دی.

شپږمه:

يَا رَبِّ لَکَ الحَمْدُ کَمَا يَنْبَغِی لِجَلاَلِ وَجْهِکَ وَ عَظِيمِ سُلْطَانِکَ. (دری ځلې)

ژباړه: ای زما ربه ! تا لره ثنا ده، داسې ثنا چې ستا د ذات له جلال او لويې او ستا د سلطنت له عظمت سره وړ ده.

د عبدالله بن عمر (رض) څخه روايت دی چې رسول الله (ص) فرمايلي: د الله يوه بنده پورتنۍ دعا ولوسته د اعمالو د ليکلو دوه پرښتې يې حيرانې کړې چې (ثواب) يې څومره او څرنګه وليکي دواړه آسمان ته اوچتې شوې او الله(ج) ته يې داسې عرض وکړ: ای زموږ ربه ! ستا بنده داسې کلمات ويلي دي چې موږ نه پوهېږو د هغو اجر څومره وليکو، په داسې حال کې چې الله ته معلومه وه.

الله پاک هغوی ته وفرمايل: زما بنده څه ويلي؟ پرښتو وويل ! ای زموږ ربه ! هغه وويل:( يَا رَبِّ لَکَ الحَمْدُ... )

الله متعال پرښتو ته امر وکړ چې تاسو هغه څه وليکئ چې زما بنده يې وايي، اجر به يې زه په خپله ورکوم.



د ماشومانو لپاره اسلامي لارښود

دا حديث امام احمد بن ماجه روايت کړی دی.

اوومه:

رَضِيتُ بِاللهِ رَبّاً وَ بِالاِسْلاَمِ دِيناً وَ بِمُحَمّدٍ صَلَی اللهُ عَلَيهِ وَسَلّمَ نَبِيّاً وَ رَسُولاً. (دری ځلې)

ژباړه: زه په دې راضي او خوښ يم چې الله زما رب دی او اسلام زما دين دی او محمد (ص) زما پيغمبر او رسول دی.

د نبي عليه السلام خادم ابی سلام (رض) څخه روايت دی چې هغه (ص) فرمايلي دي: څوک چې په سهار او ماښام کې دا کلمه ووايي (رَضِيتُ بِاللهِ رَبّاً... ) نو په الله (ج) يې حق دی- د خپلې مهربانۍ له مخې چې لده څخه راضي شي.

دا حديث ابو داود نسايي او حاکم روايت کړی دی.

اتمه:

سُبْحَانَ اللهِ وَ بِحَمْدِهِ عَدَدَ خَلْقِهِ وَ رِضَا نَفْسِهِ وَ زِنَةَ عَرْشِهِ وَ مِدَادَ کَلِمَاتِهِ. (دری ځلې)

ژباړه: پاکي ده الله لره سره له حمده، د هغه د مخلوقاتو، د هغه د رضا، د هغه د عرش د وزن او د هغه د کلماتو د رنګ په اندازه.

د ام المومنين بي بي جويريه (رض) څخه روايت دی: يو سهار چې نبي (ص) لمونځ وکړ له کوره ووت، دا بي بي خپل د لمانځه پر ځای کښېناسته او ذکر يې کاوه تر هغې چې نبی (ص) راستون شو، ګوري چې ام المومنين هماغسې ناسته ده او ذکر کوي، پيغمبر (ص) وفرمايل: ما څلور کلمات دری ځلې وويل چې هغه د ټولو هغو اذکارو سره چې تا نن لوستلي وتلل شي د هغو په پرتله درنې خيژي هغه کلمات دا دي:( سُبْحَانَ اللهِ وَ بِحَمْدِهِ... )

دا حديث مسلم روايت کړی.

نهمه:
بِسْمِ اللهِ الذی لاَیَضُرُّ مَعَ اسْمِهِ شَیْءٌ فِی الاَرْضِ وَلاَ فِی السّمَاءِ وَ هُوَ السّمِیْعُ العَلِیمُ (دری ځلې)
ژباړه: د هغه الله په نامه چې د هغه له نامه سره هیڅ شی ته په ځمکه او نه په آسمان کې زیان رسولای شي او الله اوریدونکی او عالم دی.

له عثمان بن عفان (رض) څخه روایت دی چې رسول الله (ص) فرمایلي: هر څوک چې په سهار او بیګا کې پورتنۍ دعا دری ځلې ووایي نو هیڅ شی به ورته زیان ونه رسوي.
داحدیث ابو داود او ترمذي روایت کړی او ویلي یې دي چې حسن دی.

لسمه:
اللهُمّ اِنّا نَعوُذُبِکَ مِنْ أنْ نُشْرِکَ بِکَ شَیْئاً نَعْلَمُهُ وَ نَسْتَغْفِرکَ لِمَا لاَ نَعْلَمُهُ (دری ځلې)
ژباړه: ای الله موږ تا ته پنا دروړو له دې چې له تا سره هغه څه شریک کړو چې پرې پوهېږو او ښښنه او مغفرت غواړو د هغې ګناه یا شرک چې په ناپوهۍ را څخه شوی وي.
د ابو موسی اشعري (رض) څخه روایت دی چې نبی (ص) یو ورځ موږ ته داسې وویل: له شرک څخه ځان وساتئ ځکه هغه د مېږي د پښو له غږ څخه هم وړوکی دی.
یو کس وویل: نو څرنګه کېدای شي چې موږ له داسې شرک نه ځان وساتو؟ هغه (ص) وفرمایل: دا دعا لولئ. (اللهُمّ اِنّا نَعُوذُبِکَ...)
احمد او طبراني دا حدیث روایت کړی دی.





یوولسمه:
أعُوذُ بِکَلمَاتِ اللهِ التَامّاتِ مِنْ شَرّمَا خَلَقَ (دری ځلې)
ژباړه: د الله (ج) په کاملو کلمو د هر هغه شي له شر څخه چې پیدا کړي یې دي پناه غواړم.

له ابو هریره (رض) څخه روایت دی چې رسول الله (ص) فرمایلي: چا چې په شپه کې دا دعا ولوستله هیڅ ضرر رسوونکي شیان (مار، لړم او ....) زیان نشي وررسولای.
داحدیث احمد ،نسایي، ابن سني، ترمذي او ابن حبان روایت کړی دی.

دوولسمه:
اللهُمّ اِنّی أعُوذُ بِکَ مِنَ الهَمّ وَ الحَزَنِ وَ أعُوذُ بِکَ مِنَ العَجْزِ وَ الکَسَلِ وَ أعُوذُ بِکَ مِنَ الْجُبْنِ وَ الْبُخْلِ وَ أعُوذُ بِکَ مِنْ غَلَبَةِ الدَیْنِ وَ قَهْرِ الرِجَالِ (دری ځلې)
ژباړه: ای الله ! زه تا ته پناه دروړم د خپګان او اندیښنې څخه او پناه دروړم د بې وسۍ او کسالت نه او پناه دروړم د بې زړه توب او بخل نه او پناه دروړم د پور د غلبې او د خلکو له قهر نه.
له ابو سعید خدري (رض) نه روایت دی چې رسول الله (ص) مسجد ته داخل شو ګوري چې انصاري ابو امامه ناست دی، رسول الله (ص) ورڅخه وپوښتل: ابو امامه څنګه بې وخته په مسجد کې ناست یې؟ هغه وویل: ای د الله رسوله ! غمونه او پورونه ډېر شوي او دې ته اړ شوی یم چې په مسجد کې کښېنم. رسول الله (ص) وفرمایل: تا ته داسې دعا دروښیم چې هغه ولولې نو الله به ستا غمونه او پورونه ختم

کړي؟ ابو امامه وويل: هو ! رسول الله (ص) ورته وفرمايل: هر سهار او ماښام دا دعا لوله (اللّهُمّ انّی أعُوذُ بِکَ مِنَ الهَمّ... ) ابو امامه رضی الله عنه وايي: ما دا دعا سهار او ماښم لوستله، الله (ج) زما ټول غمونه او پورونه راځنې لرې کړل.

دیارلسمه:

اللّهُمّ عَافِني فِی بَدَنِی اللّهُمّ عَافِنی فِی سَمْعِي اللّهُمّ عَافِنی فِی بَصَرِی لاَ الٰهَ الاّ أَنْتَ اللّهُمّ انّی أعُوذُبِکَ مِنَ الکُفْرِ وَ الفَقْرِ وَ أعُوذُبِکَ مِنْ عَذَابِ القَبْرِ لاَ الٰهَ الاّ أَنْتَ. (دری ځلې)

ژباړه: پرته له تا څخه د عبادت وړ نشته. ای الله ! زه تا ته له فقر او کفر څخه پناه دروړم او د قبر له عذابه پناه دروړم، له تا څخه پرته د عبادت وړ نشته.

له عبدالرحمن بن ابوبکر (رض) څخه روايت دی وايي: ما مې خپل پلار ته وويل: زه هر سهار او ماښام تا وينم چې دغه دعا (اللّهُمّ عَافِني فِی بَدَنِی... ) دری ځله لولې. پلار مې راته وويل: ما له رسول الله (ص) څخه اوريدلي چې دا دعا يې لوستله، زه غوره ګڼم چې د هغې د لارې پيروي وکړم.

ابو داود

څورلسمه:

اللّهُمّ أَنْتَ رَبّی لاَ الٰهَ الاّ أَنْتَ خَلَقْتَنی وَ أنَا عَبْدُکَ وَ أنَا عَلَی عَهْدِکَ وَ وَعْدِکَ مَا اسْتَطَعْتُ، أَعُوذُ بِکَ مِنْ شَرّ مَا صَنَعْتُ، أبُوءُ لَکَ بِنَعْمَتِکَ عَلَیّ وَ أبُوءُ بِذَنْبِی فَاغْفِرْلِی فَانّهُ لاَ یَغْفِرُ الذّنُوبَ الاّ أنْتَ. (دری ځلې)





ژباړه: ای الله ! ته زما پالونکی يې، له تا څخه پرته بل معبود نشته، تا زه پيدا کړی يم، او زه ستا بنده يم، او د خپلې وسې په اندازه تا سره په عهد او وعده ولاړ يم، د هغه شي له شر څخه چې ما سر ته رسولي دي تا ته پناه دروړم، ستا په نعمت چې ما ته دې پيرزو کړی اقرار کوم او په خپلې خطا هم اعتراف کوم نو ما ته بښنه وکړه، پرته له تا بل داسې څوک نشته چې د ګناهونو بښنه وکړي.

شداد بن اوس له نبی (ص) نه روايت کړی وايي: پورتنی استغفار د استغفار د ټولو ډولونو سردار دی، څوک چې دغه استغفار په شپه کې په يقين سره ووايي او په همدې شپه مړ شي، الله يې جنت ته داخلوي او که څوک يې سهار په يقين سره ووايي او په همدې ورځ مړ شي، الله يې جنت ته داخلوي.

دا حديث بخاري روايت کړی.

پنځلسمه:

أَسْتَغْفِرُ اللهُ الّذِی لاَ الٰهَ الاّ هُوَ الحَیُّ القَیُّومُ وَ أَتُوبُ الَیْهِ. (دری ځلې)

ژباړه: د ګناه بښنه غواړم له هغه الله څخه چې پرته له هغه نه بل معبود نشته او هغه تل تر تله ژوندی، قايم او تدبير والا دی، او همدغه الله ته زه توبه کوم.

د زيد بن حارث څخه روايت دی چې نبی (ص) فرمايلي دي: چا چې دغه استغفار ولوست ګناه يې ببښل کېږي که څه هم له جنګ څخه تښتيدلی وي (البته د کفارو په مقابل کې له جنګ څخه).

دا حديث ترمذي او حاکم روايت کړی، حاکم وايي د شيخينو په شرط صحيح دی.

شپاړسمه:

سُبْحَانَکَ اللهُمّ وَ بِحَمْدِکَ أَشْهَدُ أَنْ لاَاِلهَ اِلاّ أَنْتَ أَسْتَغْفِرُکَ و أَتُوبُ أِلَيْکَ. (دری ځلې)

ژباړه: ای الله! پاکي ده تا لره او ستا حمد وايم، ګواهي ورکوم چې پرته له تا بل معبود نشته، له تا څخه د ګناه ښښنه غواړم او تا ته توبه کوم.

د جبير بن مطعم (رض) څخه روايت دی چې وايي: رسول الله(ص) فرمايلي: څوک چې دا کلمات د ذکر په آخر کې ووايي داسې مثال لري لکه په هغه نيکۍ چې مهر لګيدلی وي او څوک يې چې د لغو او بې ځايه خبرو په مجلس کې ووايي کيدای شي د هغه مجلس کفاره وګرځي.

نسايي، طبراني، او حاکم روايت کړی دی.

اللهُمّ صَلّ عَلی سَيّدِنَا مُحَمّد عَبْدِکَ وَ نَبِيّکَ وَرَسُولِکَ النّبِيّ الأُمِيّ وَ عَلی آله وَ صَحْبِه وَ سَلّمْ تَسْلِيمَاً عَدَدَ مَا أَحَاطَ بِه عِلمُکَ اوخَطّ بِه قَلمُکَ اَوَ أَحْصَاهُ کِتَابُکَ وَارْضَ اللهُمّ عَنْ سَادَاتِنَا أَبِی بَکْرٍ وَ عُمَرَ وَ عُثْمَانَ وَ عَلِیّ وَ عَنِ الصحَابَةِ أَجْمَعِينَ وَ عَنِ التَّابِعِينَ وَ تَابِعِيهِمْ بِاحْسَانٍ أِلی يَوْمِ الدّينِ سُبْحَانَ رَبّکَ رَبَ العِزّةِ عَمّا يَصِفُونَ وَ سَلاَمٌ عَلی المُرْسَلِينَ وَ الحَمْدُ لِله رَبّ العَالَمِينَ.

ژباړه: ای الله! زموږ په سردار محمد (ص) چې ستا بنده، نبي او ستا امي رسول دی او د ده پر آل او اصحابو باندې رحمتونه نازل کړه او سلامونه پرې نازل کړه، دومره درود او سلام چې ستا علم پرې محيط دی، ستا د تقدير قلم پرې کښل شوی دی او ستا کتاب شميرلي دي.





ای الله! زموږ له سردارانو ابوبکر، عمر، عثمان، علی (رض) او ټولو يارانو او تابعينو او تبع تابعينو څخه تر قيامته په خپل احسان راضي شه.

قُلِ اللّهُمّ مَالِکَ الْمُلْکِ تُؤْتِي الْمُلْکَ مَن تَشَاء وَتَنزِعُ الْمُلْکَ مِمّن تَشَاء وَتُعِزّ مَن تَشَاء وَتُذِلّ مَن تَشَاء بِيَدِکَ الْخَيْرُ إِنّکَ عَلَىَ کُلّ شَيْءٍ قَدِيرٌ (٢٦) تُولِجُ اللّيْلَ فِي الْنّهَارِ وَتُولِجُ النّهَارَ فِي اللّيْلِ وَتُخْرِجُ الْحَيّ مِنَ الْمَيّتِ وَتُخْرِجُ الَمَيّتَ مِنَ الْحَيّ وَتَرْزُقُ مَن تَشَاء بِغَيْرِ حِسَابٍ (٢٧) آل عمران ٢٧-٢٦.

ژباړه: ووايه ای محمده (ص)! ای الله د پاچاهۍ مالکه! ته ورکوې پاچاهي هغه چا ته چې خوښه يې وکړې او پاچاهي اخلي له هغه چا چې ته يې خوښه وکړې او عزت ورکوې هغه چا ته چې خوښه يې وکړې ته او ته ذليل کوې هغه څوک چې ته يې خوښه وکړې. ستا په لاس دي ټول خير بې شکه ته په هر شي توانا يې. ته ننباسې شپه په ورځ کې او ننباسې ورځ په شپه کې او ته وباسې ژوندی له مړي او ته وباسې مړی له ژوندي او ته روزي ورکوې هغه چا ته چې خوښه يې وکړې بې حسابه.

په پای کې په دوهيله چې زموږ ګران ماشومان او تنکي ځوانان له دغو راټول شويو مالومات څخه په اغيزمنه توګه ګټه واخلي او اسلام لکه چې دی په هماغه شان دغه ماشومانو ته وروپيژندل شي.

وآخر دعوانا ان الحمد لله رب العالمين.

«والسلام»

